


## دکابل دچارواکیو کاذب سیاست!!

نهم کال یوولسمه، پرلپسې ۸۷ یمه ګڼه،محرم- صفر۱۴۳۷هق، نومبر۲۰۱۵م

دناټو دپریکړو زور اوبه شوی !!

نادیده استخبارات ...او مزدوري رسنۍ!!!... ؟

فتوحات اخیر نماینگر یکپارچگی وقوّت مجاهدین میباشد

دناټو دپریکړو زور اوبه شوی !!

په زابل کې دجګړې اصل اړخ نه !

مور، ولې په اسلامي امارت عاشقان یو ؟

د هیواد د زخمونو یو ګمنام طبیب وفات شو

دشهید قاري فضل الله (سلیم) پر جهادي ژوند ځوکرښې!



نهم کال یوولسمه، پرلپسې ۸۷یمه گڼه، محرم/صفر/۱۴۳۷هق، نومبر ۲۰۱۵م

# مورچل

لړلیك




علمي، سیاسي او جهادي میاشتنۍ خپرونه

**دامتیاز خاوند**

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنگي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر**

شکـــور (شفق)

**کتـــنپلاوی**

حســن خېـل — ایـــوب صـــافی
حســـن زوی — حکمت بغلانی
زبیر مـــسافـر — حافـظ سعــید

**تخنیکي چارې**

دفرهنگي کمیسیون تخنیکي څانگه

**مکاتباتي ادرس**


پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر
E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

مقاله

بسم الله الرحمن الرحيم

# دکابل دچارواکیو

## کاذب سیاست!!

سږني پسر لي کې داسلامي امارت دمجاهدینو کفر لړزوونکیو بریدونو دکابل داداري دچارواکیو اوددوئ داشغالګرو بادارانو پښې ولړزولې او دومره یې وراخطاکړي، چې دیوه عصبي ناروغ غوندې په اوتو بوتو سر دي ، دمجاهدینو پرلپسې ګوزارونو پرې دویرې خپسه کښېنولې ،د نفسیاتي ماتې دپټولوپه خاطر ولس اونړۍ ته ددرواغو ویلو او لاپو شاپو پرتـه بلـه نسخه نلري ، دوئ چې دجنګ پـه عملي ډګـر کـې یـې روحیات لـه لاسـه ورکـړي او شکسـت یـې خوړلی،زیاته هڅه کوي چې دماتې په توپـاني خپـوکې ډوبیـدونکې بیړۍ تـه دنجات لاره پیدا کړي او دکاذبو ډنډورو په خپرولواو دمجاهدینو په لیکوکې ددرځ او نفاق اچولـو پـه پایلـه کې خپل ځان ته دخلاصون لاره ومومي!

دخپلې ماتې دپټولو لپاره کله وایې، چې دطالبـانو پـه لیکـو کـې ژور اختلافات پیداشوي او(خدای ج مکړه )جهادي لیکو کې یې درځ راغلی ،کله وایې چې طالبـانو پـه دې اوهغـه ځـای کې ولسي وګړې وژلې ،کله وایې چې داسلامي امارت په یوموټې صف کې انشعاب راغلی ،کلـه وایې (خدای ج مکړه)داسلامي امارت زعیم امیرالمـؤمنین مـلا اخترمحمـد منصـور حفظـه الله پـه کومه داخلي شخړه کې ژوبل شوی او یا په شهادت رسیدلی او کله وایې چې طالبان نور له جګړې څخه ستړې شوي، غواړي چې پـه اصطلاح لـه کمـزورې دریـځ څخـه دکابـل دګوډاګیـانو سره سوله ایزې خبرې وکړې او...او.......

خـو حقیقـت کـې دا دددښـمنانو پرپاګنـد او دوخـت مـرور بـه ددې پرپاګنـدچیانو اصـلي څیره لاپسې بربنډه کړي، داسلامي امارت په جهادي لیکو کې داختلاف ،انشعاب اودرځ په باب هیڅ کوم توثیق شوی سند یا لاسوندتراوسه چا ندی ښودلی او نه دیوڅو ګوتو شمیر افرادو خفګان ته څوک په سیاسي نظامونو کې اختلاف یـا انشـعاب وایـي ،داسـلامي امـارت دزعامـت پـه هکلـه

دځینو مغرضو کړیودښمنانه څرګندونې د عالیقدر امیرالمؤمنین په یو غړیز پیام سره دومره بې بنسټه ثابتې شوې ، چې ورسره دکابل دچارواکیو او غربي رسنیو کاذب شفافیت او بې پریتوب هم تر جدي پوښتنې لاندې راغی ،او ترکومه ځایه چې د ډیالوګ سوله ایزو خبرو متنازع فیه موضوع ده ،نو پدې باب خو داسلامي امارت دریځ ډیر څرګند اوډاګیز دی ،اسلامي امارت دشریعت داصولو او افغاني روایاتوپه رڼا کې د خپل هدف شرعي نظام د اقامې او اشغال د پای ته رسیدو په موخه سیاسي هلې ځلې هم کوي، خو هیڅکله داسلامي اقدارو او ملي ګټو پر سر له چاسره سودا ته تیار ندی!

په مجموع کې داډول بې بنسټه تبلیغات دکابل دواکمنو دوارخطایې نښه ده او ددوئ په کاذب حکومتي تشخص ، متزلزله او پردیپاله حکومتولۍ دلالت کوي ، چې له دې پرته چې په خپل ځان او کاواکه اداره باندې خپل مورال بایللي عسکر او ملیشې نورې هم بدګمانه کړي، بلـه کومه اغیزمنه ګټه به ورته ونه رسوي!

اسلامي امارت دخپلو معقولو جهادي او تبلیغاتي تګلاروپه خپلولو سره، تل اسلامي او انساني ټولنه کې خپل وزن او وقار ساتلی او په ډیرو داسې بې بنسټو ادعاوواو تبلیغاتو یې خوله چوپ کړي او چیرته یې یو نیمه دډیر ې اړتیا پر وخت ځواب کړي ؛دجهاد لاره چې تل اغزنه او اختلافات دانساني طبیعت یو لاینفک جزء دی ،اسلامي امارت پداسې احتمالي مواردو کې، ورته معقول حل لټولی او بل لورې ته یې ترې سرایت ندی کړی ،خو دکابل دواکمنو ددې درواغجنو ډنډورو څخه داسې ښکاري، چې مجاهدینو ترې لاره ورکه کړي ،دوئ عصباني شوي اونور ددې وس نلري، چې خپله شړیدلې اداره بیرته کوشیر کړي ،دولس او نړۍ دپام اړونې او دخپلو خامیو یا تشو دپټولو لپاره وخت نا وخت داسې بې بنسټه تبلیغات په لار اچوي او لدې لارې نه دولس لاس له ګریبانه لیرې کوي.

مونږپداسې حال کې چې داډول تبلیغاتي درواغ دکابل دادارې او ددوئ دبادارانودعدم بقاء وروستۍ سلګې بولو، پر ښتن تعالی باوري یو، چې ډیر ژر به داسې کاذبې خیرې رسوا او دشرعي محاکمې میزته راکش شي.

## د امریکا دامنیتي تړون ترخنګ د ناټو

# د ماموریت غزول څه په ډاګه کوي؟!

د روان میلادي کال د دسمبر د میاشتې په لومړۍ نیټه د ناټو د بهرنیو چارو وزیرانو د بلجیم په پلازمینې بروکسل کې پریکړه وکړه چې د ۲۰۱٦ کال تر پایه پورې به خپل ۱۲۰۰۰ پوځیان په افغانستان کې پرېږدي.

سره له دې چې تیرکال د د سمبرد میاشتې په پای کې د ناټو ځواکونو په افغانستان کې خپل پوځي ماموریت پایته رسیدلی اعلان کړ، خو سږکال د دیسمبر د میاشتې په نیټه یې د خپلې مخکینۍ پریکړې په خلاف بیرته په افغانستان کې د ۱۲۸۰۰ پوځیانو د بیرته پاتې کیدو اعلان وکړ.

اوس پوښتنه داده چې له امریکا سره د امنیتي تړون د لاسلیکولو ترخنګ په افغانستان کې د نورو ۵۵۰۰ امریکایي او ۱۲۰۰۰ د ناټو ځواکونو پاتي کیدل د کوم قانوني سند او معاهدې له مخې تر سره کیږي؟

ایا د تړون له مندرجاتو بهر په افغانستان کې د اضافي امریکایي او ناټو ځواکونو پاتي کیدل خپله د امریکایانو لخوا د یاد تړون نقض نه ګڼل کیږي؟

ایا امریکایانو په یاد تړون کې کابل رژیم ته د دې صلاحیت ورکړي چې د تړون له موادو څخه د تخلف په صورت کې پرهغوی اعتراض وکړي او یاهم امنیتي تړون فسخ کړي ؟

داچې د تړون له لاسلیکولو راهیسې ډیرځله امریکایي ځواکونو پر ولسي وګړو او حتی دولتي ځواکونو بمبارونه وکړل چې له امله یي په لس ګونو کسان مړه او ژوبل ژول خو د رژیم چارواکو نه وربانديې اعتراض وکړ او نه یي هم د امنیتي تړون د فسخ کولو جرئت.

له دې ځخه دا جوتيږي چې پر دوي باندې د امريکايانو لخوا لاسليک شوی تړون قانوني تړون نه ، بلکې يوه اجباري وثيقه ده چې د هغې ټول صلاحيتونو او مصلحتونه يواځې امريکايي لوري ځانته تفويض کړي او جانب مقابل يې د هغوی پر منلو مجبور او ملزم کړی.

همدا لامل دی چې امريکايان د ياد تړون د مندرجاتو برخلاف وخت ناوخته خپلې استراتيژۍ بدلوي ، کله چې يې د دوی شرائط ايجاب کړي د ځواکونو د ايستلو او کله بيا هم د هغوي د بيرته پاتې کولو پريکړې کوي .

هغوي دا پريکړې هم په مستقلانه ډول د ځان له خوا کوي او د کابل رژيم مزدور چارواکي يې په مقابل کې د هيڅ ويلو توان نه لري.

واقعيت دادی چې د افغانستان موجود بحراني وضعيت او د هغه د مجاهد ولس لخوا د ير غلگرو په مقابل جهادي مقاومت دلته ميشت اشغالگر له سختې وار خطايي سره مخ کړي .

هغوی ۱۴ کلنې ملاماتوونکې جگړې او د مجاهدينو په لاس د زرگونو اشغالگرانو وژل کيدلو او لسگونو زرو نورو ژوبليدلو اوس له داسې مشکل سره مخ دي چې نه په افغانستان کې د پاتې کيدو او نه له هغه ځخه په مکمله توگه وتلو ته زړه ښه کولای شي .

همدا لامل دی چې د کال په سرکې له افغانستان ځخه د خپلو ځواکونو د ايستلو او د هماغه کال په پای کې د بيرته پاتې کولو پريکړې کوي .

و به کتل شي چې په افغانستان کې دامريکايانو او ناټو دغه متردده پريکړې ددوي لپاره څه گټه لرلای شي؟

دم گړی خو چې په افغانستان کې څه ليدل کيږي هغه د اشغالگرو په مقابل کې د مورال لرونکو مجاهدينو ښکاره برياليتوب او دهغوي په مقابل کې د خارجي اشغالگرو او دهغوي د مزدورو ځواکونو ښکاره ناکامي ده .

الحمد لله على ذلك وهو خير الناصرين.

ليکنه: موسی فرهاد

# ناديده استخبارات ...

# او مزدوري رسنې!!!... ؟

**لنډکی مقدمه ...**

تاريخ پوهان وايي چې له دويمي نړيوالي جگړې وروسته ، د ابر قدرتونو په نوبت په نړی کې يو شمېر آساسي او پيچلي بدلونونه رامنځ ته شول ، چې د درېيمي نړی وروسته پاتي هيوادونه هم اکثراً د هغوی په لومو کې جبراً را ايسار شول.

-- د هغو بدلونو له جملې نه دا وو چې د ډېرو هيوادونو ، جغرافيايي جوړښت تغير وکړ يعنی ځينی ملکونه چې پر لويه ځمکه به آباد وو ، هغوی پر وړو وړو ټوټو وويشل شول ، لکه عربي نړۍ چې پخوا په حجاز ، شام ، مصر او عراق کې را منحصره وه خو وروسته څه د پاسه ٢٤ يا ٢٦ واړه ملکونه ځيني جوړ شول .

-- دويم بدلون دا وو چې د حکومتولی په سيستم کې ديموکراسی عملاً د ديکتاتوری ځای اشغال کړ ، دا کار که څه هم د ځينو لپاره د خوښی لامل شو خو استعماري ځواکونو بيا د ځان په خير ونه گاڼه ، ځکه په دې سره د خلکو استقلال حتمي بڼه غوره کوله او دا د قدرتمندو په گټه نه وه ، بيرته يې د هغه شکل په دې ډول وربدل کړ چې په ښکاره د هيواد نظام او رهبري د عامه وگړو په واک کې وي خو په حقيقت کې يې واکمن دوی نه ، بلکي هغه حساسي او خفيه اداري وي ، چې په يو نه يو ډول د ښکيلاکگرو د گټو که په کلي ډول ساتندوی نه وي ، مخالف خو يې لږ تر لږه نه وي .ځکه چې د همغو ابر قدرتونو په تمويل او تبليغ د دغو استخباراتي ادارو د خفيه واکمنی لپاره زمينه سازي شوې وي .

--درېیم بدلون دا وو چې د آزادو رسنیو سیستم ایجاد شو ، په ظاهره خو دا د دې لپاره وو چې خلک به خپل غږ اوچتوي او خپل حق به ترلاسه کوي ، مگر واقعیت داسی نه و بلکې د همغو خفیه واکمنو د پلانونو د پلي کولو لپاره وي چې په حقیقت کې د استعمار آله کار وي.

نن سبا چې په نړۍ کې موږ او تاسو وینو د تاریخ لیکونکو دا ډول خبري بیخي رښتیا برېښي .دا ځکه چې د امریکا په مشرۍ د نورو نړیوالو کفري ځواکونو پلان همیشه دا وي چې هیوادونه تجزیه کړي ، د مسلمانو خصوصاً کمزورو ملکونو استخبارات د پیسو په زور د ځان کړي ،او بیا د همغوی په مټ پر مسلمانانو خپل استعماري پلانونه ، کفري آیډیالوژي او غربي کلچر تحمیل کاندي ، همدا یې ترټولو ستره ارزو وي . په افغانستان کې یې عیناً همدا لوبه پیل کړي .

**-ملي امنیت او رسنۍ ...**

اشغالگر او تیري کوونکي کفار که څه هم پخپله د ځان لپاره هرڅه معیاري غوره کوي یعنی استخبارات یې د ځان لپاره داسي عیار کړي وي چې له هره اړخه د خپلو خلکو ، خپلو نظامونو او خپلي جغرافیې د ساتني وړتیا لري؛ دا راز رسنۍ هم .

خو پر مسلمانانو یې بیا داسی خلک مسلط کړي وي چې هغوی په هیڅ معیار پوره نه وي . فقط د دوی د مزدورۍ او غلامۍ لپاره ښه آماده وي ، د دې بېلگه په افغانستان کې د امریکا په لاس درامنځ ته شوي گوډاگۍ اداري ، ملي امنیت ، او د کابل آزاده میډیا ده .

دا دواړه مستقیماً د امریکایی اشغالگرو په تمویل او ترزیق پر افغانانو مسلط شوې نامطلوبه اداري دي .د کابل ملي امنیت یا جاسوسي اداره ، د معیار له پلوه دومره کمزوري ده چې همیشه یې پلانونه خونسا نیمگړي او له رسوایی سره مخ وي. دا خو پرېږده چې دوی به ابتکارات کوي ، د پټو پلانونو پر بنسټ به د هیواد ساتنه کوي ؛ بلکې له هرڅه نه دومره ناخبره وي؛ چې مجاهدین یې په مرکزي دفتر کې اسدالله خالد ورته والوزوي . پر پارلمان په رڼا ورځ بریدونه وکړي ، پر هوایي ډگرونو ، د اشغالگرو پر دفترونو ، پر وزارتونو او نورو حساسو ځایونو په سلگونو ځله بریدونه ترسره کوي ؛ دوی ورباندي خبر هم نه وي، له لویو زندانونو څخه په زرگونو بندیان مجاهدین په داسی پیچلو پلانونو آزادوي چې د دوی) استخباراتو (په دماغ کې

لا نه ورتيريږي . ولي له پيښې وروسته بيا دوی را ولاړيږي پر بې گناه خلكو د مجرمينو ټاپې لگوي او تر بيلابيلو غير انساني تعذيبونو لاندي يې نيسي .

**-د دوی کارنامه..**

د دوی ستره کارنامه دا وي چې په دروغو داسي يوه آوازه د ځينو مزدورو رسنيو په مټ خپره کړي چې يونيم ساعت وروسته وربانـدي رښـتيا شي او پـه شرمونـو وشرميـږي .حالانکـه استخبارات هيڅکله داسی خبره تر هغو پوري نه کوي چې ۱۰۰ ٪ فيصده يې يقيني نـه کـړي . حتی ځيني وختونه خبرونه قصداً پټوي ، که څه هم د دوی په گټه وي او سل په سلو کې رښتيا هم وي ، مگر د کابل دگوډاگی اداري ملي امنيت چې په فيسبوک کې خبر واوري هم يـې يـو شيبه وروسته خپروي چې ، گويا داسی کارنامه يې انجام کړه .

د کندوز د نيولو له پيښې څخه ملی امنيت بيخي خبر نه و ، ترڅو چې خبره ډيـره لويـه او عامه شوه . بيا يې هم په سهار آوازه خپره کړه چې د طالبانو د کندوز والي او د هغه معـاون مـو وژلي دي .تر دې چې والی صاحب ملاعبدالسلام په خپـل ږغ کـې د خپـل شـهادت خـبره رد کړه .

**-د کابل دجاسوسي اداري تازه خبر..**

پرون يې د ميدان وردگ د والي مرستيال عبدالله سرحدي د وژل کيـدو خـبر د سرخـط ورځپاڼي له لاري خپور کړ چې گويا هغه په خپل منځي شخړه کـې وژل شـوی ،) سرخـط (د ملي امنيت په پيسو څو بـې لاري او بداخلاقـه ځـوان هلکـان چلـوي چـې پـه هغـو کـې يـو د سيدشاسقيم په نامه دی او ويل کيږي چې مسئول يې هم دی دی.

په دې کار سره د کابل د گوډاگي سيټ آپ استخباراتو او د امريکايـانو مـزدورو رسـنيو خپل حيثيت له ښه ذلت سره مخ کړ . له بلي خـوا د اشرفغنـی د مرسـتيال ويانـد هـم د ارگ لـه ادرسه په دروغو خپل بيانونه ورکوي او د رسنيو ځينو مزدور ماموران په اصـطلاح شـنونکي بيـا خپلي شنني او تجزيې وړاندي کوي ، دا په داسی حال کې ده چې د طالبانو د مشر په اړه چې کومه د دروغو بې آساسه ډرامه نشريږي ؛ اصلاً هيڅ پيښه رامنځ ته شوي نه ده . پخپله عبـدالله سرحدي وايی چې زه ژوندی يم او له خپل مشر منصور صاحب سره مي هيڅ خبره نه راغلي او

نه به راشي . له دې سره سره بيا هم د کابل نادیده استخبارات د خپلو نام نهاده رسنيو په مټ بې سنده خبر نشروي ؛ دا د دې ښکاره دليل دی چې دا ډول جاسوسي ادارې څومره کمزوري او غیر معیاري دي او اشغالګرو ځواکونو بیا هم پر يو مستعمره هیواد مسلط کړي وي ، رسنۍ چې دغه ډول ښکرور دروغ په ښه وثوق سره خپروي چې د ارګ له ادرسه هم د تصدیق ټاپه ورباندي لګوي ، او بیا نیم ساعت وروسته رښتیا کیږي ، نو په دې سره د ګوډاګۍ ادارې ، د هغې د جاسوسي ارګان او مزدوري میډیا څیره له ورایه څرګندیږي چې دوی څومره په هغه تول پوره دي چې له نړیوالو معیارونو سره د همغږۍ خبري کوي . او د یرغلګرو د عزایمو اټکل هم ورځیني کیدای شي چې هغوی د خپلو ګوډاګیانو په اړه څومره سنجیده دي ، چې دا ډول نادیده استخبارات یې ورباندي مسلط کړي او دروغجني غیر معیاري رسنۍ یې په واک کې ورکړي!... ؟

# دوقار پګړۍ

مولوي ولي الله ذهين

ها د پردو مسئله اوس لا هم لاینحل پرته ده
دوطن ناوي لا رنځوره پر اجل پرته ده
زلمو دخدای په لحاظ اور دنفاق مه بلوئ
دتېر تاريخ صحنه مې اوس هم پر ګوګل پرته ده
داستشهاد دزلمو لاس به دې ګريوان ته پريوزي
دهر شهيد وينه دې لار کې پل په پل پرته ده
دبوري کونډې آه شهيد پوري تر عرشه درومي
دقبر خاوره يې لا اوس هم په اوربل پرته ده
پلار يې شهيد لور يې له لوږې په ژړا کې مړه شوه
قبر ته پر مخې ماشومه پر څنګل پرته ده
پر خپل مسير مستقيم اوسه دذهين جانانه !
ستا دوقار پګړۍ لا اوس هم ول په ول پرته ده

# دناټو دپریکړو زور اوبه شوی !!

لطیف عزم

دناټو دبهرنیو چارو وزیرانو په ورستی ناسته کې چې دبلجیم هیواد په پلازمینه بروکسل کې ترسره شوه ، له افغانستان سره یې دخپلو نمایشي مالي مرستوپه تعهد سربیره چې تر۲۰۲۰ کال پورې به دوام ورکوي ، اعلان وکړ چې د۲۰۱٦ کال ترپایه به خپل ۱۲ زره پوځیان هم هلته ساتي.

امریکا اوناټو فکر کړی وو چې افغانستان څو لسیزو ناورینونو او ویجاړونکو جګړو کلک ځپلی او افغانان یې خدای مکړه له همت او میړانې غورځولي ، نو چې هر څه امریکا

اوناټو غواړي، دخپل وحشت اوډالرو په مرسته به یې هلته په ډیرې اسانی ترلاسه کړي او دتل لپاره به افغانستان دیوې مستعمرې په ډول په خپلو ناولو پنجو کې وساتي

خو دالله تعالی په خاص عنایت اونصرت ناټو او امریکا ته دتیرو ۱۵ کلونو په اوږدو کې دیوشمیر افغان نما څیرو څخه علاوه دقاطع افغان ولس غرور او استقامت ښه ور په ډاګه شو ، په دې معنا چې دامریکا ټولې ستراتیژی اودناټو دسرمشریزو ټولې افغان دښمنه پریکړې یې یو په بل پسې له کار وغورځولي ، مجهز لښکر او مجرب جنرالان یې له شکست اورسوایي سره مخ کړ او بلاخره یې له هغوی دالاره ورکه کړه چې په کوم هنر او تکتیک له افغانستان څخه ځان وباسي .

دکابل پرسوده رژیمونه دومره ذلیل ، رسوا او خندني وو اودي چې خپله مامورینو اومعاش خورو ته یې هم دمنلو وړ نشول ، هغوی په وازکومي وایي چې کابل رژیم تر دو غوړونو په فساد او درغلیو کې ډوب اوهیڅ ډول کفایت نلري ، ځکه دیوررژیم مشروعیت چې دامریکا دبهرنیو چارو دوزیر پریکړې پورې تړاوو ولري اوهغه یې ټاکنه اوتشکیل وربرابروي ، له دغه رژیم اوپه اصطلاح دولت څخه به خلک دکوم خیر او فلاح هیله ولري ، همداډول یوځوک چې ځانته دولت او حکومت وایي او هغه دکابل ښار امنیت او په ولایتونو

کې ددولتي ودانیو او ادارو امن او دفاع نشي خوندي کولای، نو دعام ولس غوښتنو او اړتیاوو ته به څه ځواب وواېي.

ددغه کاواکه رژیم لپاره صرف اوصرف د ناټو دغه ناستي پاتي دي چې کله جوړي شي اودافغانستان په باب دهمکاریو څه وعدې وکړي نو بیا دکابل چارواکي دیوڅه مودي لپاره سره وغوړیږي او تبلیغات پیل کړي ، چې مونږ دبهبود اوسمون په خوا روان یو ځکه چې نړیوالې ټولنې بیا خپل تعهد له افغانستان سره تازه اوتجدید کړ چې یواځې به یې نه پریږدو .

خو ولس دومره هم ندي ساده چې له ۱۵ کلونو ورسته هم په دې خبره نه پوهیږي چې ناټو او امریکا کومي مرستي دکومو موخو لپاره له افغانستان سره کړي او افغانانو ته یې کومه ګټه او نفع رسیدلي .

که په رښتیا هم دامریکا اوناټو مرستي او دخواخوږی تعهد له افغانانو سره وای او افغانانو یې عملي نتیجي لیدلي وای ، ولې به اوس له افغانستان څخه په میلونو خلک اروپا اونوري دنیا ته په تیښته او فرار کې وو ، داټول ددې خبرې دلیل اولوی ثبوت دي چې ناټو او امریکا څومره مصرف او لګښت په افغانستان کې کړی هغه یې دافغانانو دبربادی ، وژلو اوپه ډول ډول ناورینونو کې داخته کولو په نیت کړی.

پرون دبروکسل په ناسته کې چې ناټو کوم تعهد وکړ چې د۲۰۲۰ کال ترپایه به هرکال افغانستان ته ۴ ملیارده ډالر ورکوي، خلک به دافکر کوي چې ناټو دافغانستان او یا کابل اداري غم اخیستي ، خو دالمان دبهرنیو چارو وزیر مولر ، داخبره خپله په ډاګه کړ چې اروپایی ټولنه دمهاجرینو له هجوم سره لاس اوګریوان ده، چې په دې برخه له افغانستان څخه هم دنا امنیو او بې کاریو له امله زرګونو فامیلونو یواځې المان ته راغلي او یا راوان دي ، ددې لپاره چې افغانان ددې خبرې احساس وکړي چې نړیوالي ټولني له افغانستان څخه لاس ندی اخیستی باید دپراخو مرستو اعلان ورسره وشي ، چې لږ ترلږه افغانستان سره هرکال د۴ ملیاردو ډالرو مرسته دهغو برخه ده .

نتیجه داچې دبروکسل په ناسته کې ناټو دمرستو کوم تعهدپه ډاګه کړی، هغه یو نمایشي ګام دي چې اصلي هدف یې دمهاجرینو او پناه غوښتونکو دهغه سیلاب مخنیوی دی چې اروپا ته ورخلاص او په ډیره تیزی روان دی ، اروپایان فکر کوي چې افغانان به دهمدغو مالي وعدو په مټ تیر باسي او دهغې بې ثباتی مخ ته به دشګو بند جوړ کړي کومه چې دناټو او امریکایی اشغال له امله هلته راغلي .

# اسلامي امارت

## د بخښنې ورپرانیستی دی

سید شریف

اسلامي امارت د یو منظم حکومت په څیر جوړښت او بیلابیل ارګانونه او میکانیزمونه لري، د پوځي، سیاسي، فرهنګي، تعلیمي، اقتصادي او د دعوت او ارشاد چارو دسمبالښت لپاره ځانګړي کمیسیونونه لري، چې د هیواود الو د سوکالۍ او ګران هیواد دخپلواکۍ او اسلامي نظام دقیام په موخه هلي ځلي کوي.

داچې د هیواد په مختلفو برخو خصوصا کندوز او ګاونډیو ولایتونو کي یې داسلامي امارت مجاهدینو اوس ډیر فتوحات ترلاسه کړي او د نیکه مرغه دهیواد په لر اوبر کي د سوبو لړۍ لا هم جاري ده.

تول هغه هیوادوال چې د یرغلګرو ځواکونو او کابل اداري سره کار او همکاري کوي نور باید ددغه کرغیړن صف څخه لاس واخلي او دمجاهدینو سره همکاري پیل کړي، ترڅو په دنیا کي د ذلت له مرګ او په اخرت کي دکفارو په ټولۍ کي د را پورته کیدو څخه وژغورل شي.

یرغلګر کافران او دهغوی لاسپوځي رژیم له پیله داسلام او افغانستان دښمنۍ ته ملاتړلې ده، دوی هڅه کوي چې دافغانستان او افغان ولس تاریخ تحریف او اسلامي او افغاني د ویاړه ډک هویت یې مسخه کړي، داپه واقعیت کي د افغانستان د مستعمره کولو ا وتجزیه کولو یوه خطرناکه دسیسه ده، نو ټول هغه هیوادوال چې دافغانستان او افغان مجاهد ولس په درد دردمن دي دیرغلګرو ځواکونو اوګوډاګیانو د توطیو مخه یې باید ونیسي.




ددښـــمن د ذکــر شــوو دسیســو د مخنیــوي تــر ټولــو مــوثره لار داده چــي اســلامي امارت په خپلو معنوي او مــادي مرستو سره پیاوړی کړو، ځکــه اسلامي امارت ثابته کړې چي یو ځل يې پــه نویمــه لسـیزه کــي افغانســتان د تجزیــې څخــه وژغــوره،داړمن امنیت يې ټینګ کړ،اسلامي شریعت يــې پــلي کړ او په ټوله کي مظلومو هیوادوالوته يــې د هر اړخیز بحران څخه د نجات لار پرانیســتله اوبیا يې پرافغانستان د صلیبي یرغل پرمهــال داجنبي قوتونو سره داسلام او هیــواد پــه سر هیڅ ډول سودا ونه کــړه، خپــل واک،ژونــد او هرڅه يې په خطر کي واچول خــو داســلام د احکامو نقض يې ونــه کــړ او دافغــان ولــس ویاړونه يې داغمن نه کړل.

د اسلامي امارت روانه ســپېڅلې مبــارزه چي د گــران هیــواد د خپلــواکۍ او داســلامي نظام د قیام لپاره جاري ده،دښمن په مختلفو نومونو او رنګونو هڅّه کــوي ددې ویــاړمني مبارزې افتخارات دپردیو لمني تــه واچــوي او دازادۍ ګټلو روان جنګ ته د نیابتي جګړې او نور نومونه ورکړي،هغه کســان چــي دکابــل اداري سره کار کوي او یاداستعمار د رواني او تبلیغاتي جګړې څخه اغیزمن شــوي وي، دې ته باید ځير شي چي دکابل رژیم چا دڅه لپاره زیږولی،روزلی او پالي يــې؟ لنــډ ځــواب يــې دادی چــي اســتعمار دمســلمانانو دځپلــو، دافغانستان اوسیمي داســتثمارولو اود خپلــو ستراتیژیکو موخو لپاره دکابــل اداره پــالي او تکمیلوي.

د هیواد درانه علماء، پوهان،متنفــذین او قومي مشران بایددکابل رژیم سره همکــار او په مختلفو ارګانونو کي بوخت کسان وهڅوي چــي ددغــه بلــواک ا وفاســد رژیــم څخــه را ووزي،اسلامي امارت چمتــو دی ټولــو هغــو کسانو ته چي دوی يې ضمانت وکړي دسر او مال د حفاظت او ډاډمن ژوند تیرولو تضــمین ورکړي .

سعید بدخشانی

# فتوحات اخیر نمایانگر یکپارچگی

## وقوّت مجاهدین میباشد

با وجودیکه موسم سرما فرا رسیده وچادر سفید برف زمستان کوها ودرّها را پوشانیده است باز هم حملات کشنده شیران غرّا وشفتگان دین وایمان بر پیکر دشمنان دین و وطن در گوشهء وکنار کشور همانند فصل گرما بسرعت جریان دارد وبه پیش میرود.

بلی!برخلاف سالیان گذشته امسال بلا وقفه سلسله مبارزات جهادی،تصرف مراکز، قرارگاه ها،پاسگاها،ولسوالی ها وفتوحات چشمگیر وگسترده در اکثر نقاط کشور اعم ازشمال،جنوب،شرق وغرب ادامه دارد این خود بیانگر نصرت الله جل جلاله، قوّت، فداکاری، شهامت ووحدت مجاهدین امارت اسلامی میباشد.

برخی منابع دشمن نیز تأید نمودند که حملات مرگبار طالبان با فرا رسیدن فصل سرما برخلاف سالهای قبلی کند نه بلکی شدت پیدا کرده ونیروهای طالبان با دست باز در مناطق سرد سیر کشورعمل میکنند که این خود یک چالش جدی وخطرناک در برابر عساکروارگانهای امنیتی اداره کابل محسوب میشود.

دراین شکی نیست که مجاهدین وشیرمردان قهرمان امارت اسلامی همزمان با آغاز برف وسرما عملیات وتحرکات خویش را بیش از پیش تشدید بخشیده وبسیار ساحات کشور را از وجود دشمن پاکسازی وتحت پوشش خود درآوردند،بطور نمونه مبارزان شجاع وسلحشور بدخشان (که یک ولایت نهایت سرد سیر ودارای درّه های پرخم وپیچ نیز میباشد)بر ولسوالی استراتیژیک یمگان یورش وحملات تهاجی نمودند که پس از اندک مقاومت مقر ولسوالی، قوماندانی امنیه،امنیت ملی بطور فشرده همه تأسیسات واراضی ولسوالی متذکره رابطور کامل فتح،تعداد عساکر دشمن کشته وزخمی متباقی به کوهای درّه وشنگان این ولسوالی متواری شدند که عدهء دیگر عساکرفراری در اثر شدت سرما وماندن در درّه های پر برف وسردی هوا جان باختند،همینگونه چندی بعد در پی یک حمله تاکتیکی دیگر مجاهدین غیور این سرزمین بر بیس وپوستهای دشمن در ساحات شخ وغول وسوچ بالا وپاین

ولسوالی جرم یک بیس ودو پوسته بتصرف نیروهای امارت اسلامی درامد ودشمن از ساحه پا به فرار نهادند،این شهکاریها وپیشرفتها درحالی صورت میگرد که برف با چادر سفید خود دشت ودامان این ولایت را پوشانیده وسرما شدت گرفته است،به واقعیت که این خود نشانگر امداد غیبی،ایمان راسخ وقوّت سربازان اسلام در بدخشان میباشد که عساکر فریب خورده وبزدل اداره مزدور کابل را سراسیمه وازهم پاشیده است.

همچنان یک چرخ بال دشمن درساحه تخت بازار ولسوالی خواجه موسی ولایت فاریاب در پی حملات رسای مجاهدین غیور آن ولایت واژگون گردید که دراین واقعهء نهایت عظیم ومهیب۵تن از عساکر دشمن کشته و۱۵تن دیگر دستگیر وطیاره حریق گرید، این خود یک ضربه نهایت بزرگ ومهم دیگر بر دشمن بود که سردمداران اداره دو سر وبادارانشان را شدیداً تکان داد.

همینطور در بسیار مناطق ولایات غور،تخار،بادغیس وپکتیکا از سوی مجاهدین دلیر وباشهامت امارت اسلامی بر پاسگاها ومراکز دشمن حملات پیهم وهدفمند صورت گرفت که در نتیجه ساحات بی شمار ومراکز زیادی دشمن فتح وبه کنترول مجاهدین درآمد،وسلسله ضربات منسجم وطراحی شده علیه دشمن در تمام نقاط کشور در همین ایام سرما جریان دارد ومتوقف نخواهد شد.

بدون تردید اسلام عزیز غالب است ومغلوب نخواهد شد ،عاقبت پیروزی از آن مسلمانان خواهد بود،من کاملاً متیقنم که در همین عصرکنونی همه شأن،شوکت ودبدبه کفار وخونخواران جهانی در برابر ایمان فولادین وعزم متین ملت های اسلامی به ویژه در برابر ملت کفرشکن وقهرمان افغانستان بشکست فاحش وذلت جبران ناپذیر مواجه شده اند،اقتصادشان به رکود مواجه گردید است، وبرعلاوه که هزاران تن از عساکر منهوس شان در این کشور طعمه مرگ گردید دها تن دیگر شان به امراض روانی مبتلا شدند که فعلاً در بیمارستان های جهان کفر تحت درمان قرار دارند،مگر افغانها چه دارند؟که این همه امپریالیسم جهان خوار را به زانو در آورده اند،فقط ایمان کامل،عزم متین ویکپارچگی ووحدت مجاهدین وملت متدین مرز وبوم این سرزمین است که قدرت های جهان خوار را زبون وشرمسار بیرون میرانند.

یقناً وحدت، صمیمیت، اخلاص، عدالت، اطاعت، انصاف ،ازخودگزری ومتکی بودن به الله بی نیاز رمز موفقیت های دنیوی واخروی میباشد،پس اُمراء،مجاهدین وهمه مسلمانان امور فوق ورمز تعالی وکامیابی را نباید فراموش کنند.

حسن زوی

# په زابل کې د جګړې اصل اړخونه!

موږ دا تـــريخ حقيقــت منــوچې پـــه افغانستان کې د صليبي تـاړاکګرو خـلاف پـه رواني جګړه کې داشغالګروپه پرتلـه افغانانوتـه ډېرزيـــات ځـــاني، مـــالي اومعنـــوي تاوانونـــه وراوړېـــدلي دي خوبهرنويرغلګرواوخصوصـــاً امريکاتـه چـې کـوم ځـاني اومـالي تاوانونـه ورواوښتل هغه هم څه کم ندي بلکـې پـه خپـل ذات کې خوراډېرزيات اوستردي.

البتـه بـې سـارى بـه نـه وي ؛ امريکاتـه دجنګونوپه خپل تورتاريخ کې داسې ډېرځـاني اومالي تاوانونه وراوښتي دي خوپه خپل تـاريخ کـې يـې دومـره جنـګ نـه وليـدلی پـه څـومره اوږدجنګ کې چې دلته راښکېل شول.

دامريکـا پـه مشرـۍ کـې دغـربي نـړۍ دښکروروپرضدپه افغانستان کـې دجنـګ مـوده کـابو يـوې نيمـې لسـيزې تـه ورسـېده چـې دادامريکادجنګونوپه تاريخ کې دجنـګ ترټولـو اوږده زمانه ده .

هغه جنګ چې امريکا يې په څو ورځـوکې دګټلوتمه لرله تريوې نيمې لسيزې پـورې يـې ورتــه اوږدېــدلو دځــاني اومــالي ســترو زيــانونو ترڅنګ معنوي لوی زيان هم وروااړاوه؛حيثيـت يې دخاوروسره خـاورې شـو؛اعتبارته يـې لـوی تاوان ورسېد؛ پرنړۍ قائم رعـب يـې لـه منځـه ولاړ ؛دجبراووحشت په تـاريخ کـې يـې يوبـل باب هم ورزيـات شـو ؛پـه نـړۍ کـې لازيـات بدنام شول اوددې هرڅه ترڅنګ يې چـې هـيڅ هـم ترلاسـه نکـړل نـو دطالبانوپـه مقابـل کـې دجنګ دګټلونه مايوسه امريکايـانو اومتحـدينو يې د جګړې په جريان کې د طالبانو پـر خـلاف ټولې هغه فکري حربې اسـتعمال کـړې چـې لـه امله يې فکرونه منحرف کيږي او منظم صـفونه ټوټه ـ ټوټه کېږي.

ډېــرې زيــاتې هڅــې يــې وکــړې چــې مجاهدين پخپلو کې سره واچوي او دوئ ورتـه د سيالګرو په توګه پر لوړه غونـډۍ کېنـي؛ پـدې لارکې يې ډېرې زياتې پيسې هم ولګولې .

خوآفرین دطالبانوپه تاریخي استقامت چې امریکااوټوله صلیبي نړۍ یې پدې هڅوکې ناکامه کړه؛ دامریکا او نوروصلیبي اتحادیانو دټولو شومو پلانونوپه مقابل کې دسد سکندرپه څېرکلک ودرېدل؛ په ډېروسختو حالاتوکې یې خپل یووالی وساتلو؛ خپل صف یې ماتېدواوخپل وحدت یې رنګېدوته پرېنښود؛ خپل جهادیې دواحدقیادت په اطاعت کې په داسې ښه شان روان وساتلوچې دښمن پرې هم څوځلې اعتراف کولوته اړشو

نوځکه یې دداخلي اوبهرني اشغالګردښمن په مقابل کې مقاومت له یونه بل کال ته زیاتېد لو او صفونه یې لا زیات منظم اوغښتلي کیدل، د بې اتفاقۍ ، نفاق اوشقاق هېڅ څرک نه لګیده او هر مجاهد د اتفاق لپاره کوښښ کاوه چې په برکت یې دښمن پدې ډګرکې هم دسختې ماتې سره مخامخ اودزیاتې ناهیلۍ ښکارشو چې همدا دټولې نړۍ دمسلمانانولپاره دډېرې خوښۍ وړ او هیله بښونکې خبره وه.

پدې زموږ دښمن اوس ښه پوه شویدی چې زموږ دکامیابۍ راز زموږپه وحدت کې مضمردی اوترڅوچې موږیوموټی یوکه دصلیبي داوسني اتحاد نه هم څوچنده ستردښمن سره موترپېږیوجنګ اوږد شي رابانـدې برلاسی کېدای نه شي نوځکه

اوس مکاردښمن له نوروټولولاروخپله توجوراړولی ده اوخپل ټول وسایل یې د دطالبانوترمنځ خپلمنځي اختلافاتو اچولواودجهاددصف ماتولوته ځانګړي کړیدي ؛ ددښمن رسنۍ پدې اړه ډېر پوچ تبلیغات کوي ؛ ډېرله دروغـودک راپوروـنه خپروي ؛ کوچنوخبروته ډېره هوا ورکوي ؛جورنالستیک اصول ترپښولاندې کوي اوحقایق مسخ کوي .

تاسې محترمولوستوالوته به یادوي چې کله اسلامي امارت دامیرالمؤمنین ملامحمد عمرمجاهدرحمه الله تعالی دوفات خبرخپوراوخپل نوی امیر یې اعلان کړاوامارت ته منسوبوڅلورپنځوتنانوپه بیعت کولوکې تاخیروکړنودښمن دخپلورسنیونه داسلامي امارت پرضد دتبلیغاتي وسیلې په توګه ډېرزیات کارواخست ؛ټول امارت په خپل نوي امیرمتفق اوراټول واو ایله څلورپنځو تنانوپه بیعت کې تاخیرکړی و خو همدا دڅلورو پنځو تنانو تاخیرېې په دوه برخو دامارت دویشل کېدلو او دطالبانود وحدت په ماتېدلوتعبیراوه اوپه مسلسل ډول به یې ویل چې ګواکې دتل لپاره طالبان په دوه برخوویشل شول ؛یواځې پدې یې هم بسیا نه کوله بلکې دابه یې هم ویل چې په دوه برخوویشل شوی طالبان په خپلومنځونوکې ښکرپه ښکردي اودهېواد په مختلفوبرخوکې ددواړوډلوترمنځ جګړې رامنځته شویدي چې

دواړو لوروته ګڼ ځاني تلفات هم اوښتي دي حال داچې دهېواد په ګوډ ګوډ کې په ډېر جوش اوولولې دنوي اميرسره دبيعت کولولپاره جلسې جوړېدې اوپه لوړه اوتېته کچه دامارت ټولومسئولينودامارت دنوي زعيم نه خپل اطاعت اعلاناوه .

اوس چې دزابل په شمالي سيمو کې داسلامي امارت دمجاهدينواوداعش ته منسوبو وسلوالو ترمنځ يوه ورځنۍ جګړه رامنځته شوه نومکارردښمن يوځل بياخپلې رسنۍ داسلامي امارت پرضد دتبليغاتي وسيلې په توګه وکارولې اوداجنګ يې دامارت دمجاهدينو ترمنځ خپلمنځي شخړه وبلله اودجګړې دواړواړخونوته يې دخورازياتوځاني تلفاتودوراوښتلودرواغجن خبرونه خپاره کړل .

هو!داسلامي امارت مجاهدينو دډېرمجبوريت اواشدضرورت له مخې دهماغه داعش پرضد وسله راپورته کړه چې اسلامي امارت په ګوډاګيتوب اوبغاوت تورنوي اوداسلامي امارت مجاهدين مرتدين بولي ؛ په سيمې کې به يې دپيسولپاره خلک تښتول ؛دداعش سره له تړاو لرونکوپرته يې دهرچا مال غنيمت ګڼلو دعامو مسلمانانوښځې به يې تښتولې وينځې به يې ګڼلې اودوينځوپه څېربه يې استخداموليې ؛بې ګناه ولسي وګړي به يې په يواوبل نوم په ډېر بې رحمانه ډول وژل اوداهرڅه به يې عبادت ګڼلو نوځکه به يې په دې اړه دچاتوصيې ته هم التفات نه کاوه اودولايت په سطحه دقومي مشرانواودامارت لوړرتبه چارواکونه جوړهيئتونه به يې په ډېروسختواودغرورنه په ډکوالفاظوجوابول چې خبره ستري قومي اومذهبي شخړې ته رسېدلې وه نوداسلامي امارت دتاسيس هدف چې ددغسې وحشتونواوظلمونونه خپل ملت ته نجات ورکول وو اوس يې هم ديوشرعي نظام په حيث دبې چاره مظلومينوپوښتنه کول خپل شرعي مسئوليت باله ځکه يې ددې ظلم پرضد عملی اقدام وکړ.

تېروتجربوته په پام سره اسلامي امارت پدې باورلري چې که ددغسې فتنوپه اړه له غفلت نه کارواخستل شي اوپه وخت يې مخه ونه نيول شی نوخدای مکړه په ټول هېوادکې به د ۹۰ يمې لسيزې نه هم بد حالات رامنځته اوملت به مودلويو بدبختيو سره مخ شي.

اسلامي امارت چې دنړۍ دتاريخ دترټولوسترصليبي اتحاد سره دتېرې يوې نيمې لسيزې راهيسې په جنګ اخته دی اودا اتحاد يې اوس په ګونډوکړيدی دجهاد صف کې انتشاراوجهادته دمنسوبوډلوپرضد دځان اوټول عالم اسلام لپاره ډېر تاواني بولي او ورنه دځان ساتلو خپل ټول کوښښونه کوي نوځکه يې په ننګرهار، لوګر، غزني اوزابل کې دداعش دډېروکوچنيوډلوته سټروفدونه ورواستول اوداسلامي امارت قيادت بغدادي ته خط

واستولوخوچې بغدادي اودلتــه دې ډلودامـارت داهځې په بزدلۍ اوخوف تعبير کړې ؛ دغرورنـه پــه ډک انــداز يــې ردکــړې ؛داســلامي امــارت هماغه پـاک مجاهـدين چـې دتېـرې کـابويوې نيمـې لسـيزې راهيسـې يـې داسـلام عظيمـه شـجره پـه خپلووينوسـيرابه اودخپلوسرونوپـه قربانۍ يـې داسـلام اومسـلمانانونه دفـاع وکـړه داعشي- ډلـې همـدامخلص مجاهـدين ځکـه مرتدين وګڼل چې ددوئ تابع نه شول ؛ دهمـدې مجاهدينو اوبې ګناه ولس قتـل عـام پسـې يـې متـې راونغښـتې ؛ دننګرهــار پــه شــينوارو اونوروسيموکې يې غونـډې غونـډې قريـې لـه خلکوتخليه اوستر ستركلي يې وسوزول ؛ دسـړو داختطافونونه يـې خـبره دکوچنيـانو اومېرمنـو تراختطافونو،بې عفته کولواوبيا يـې پـه ډېـرې بې رحمۍ وژلوته ورسېده ؛ شرعي لارښوونې يې ترپښولاندې اودين يې دخپـل متشـدد ذهنيـت تابع کړنواسلامي امارت هـم دمجبوريـت پـدې سترعالم کې ددوئ پرضد اقدام کول اړين وبلـل ځکـه چـې دژبنيـزو، قـومي، لسـاني اومـذهبي توپيرونوپرته اسلامي امارت دداسې وحشت نه دخپل ټول ولس سـاتنه دځـان مسـئوليت بـولي اودامسئوليت به په کامل جرأت اداکوي .

په عراق اوشام کې دعامومسلمانانوپرضـد دداعش ظلم اووحشت له خلکو دمالکي اواسدي لنډغرو ظلمونه هېر کړل ؛ داعش دالقاعده هغـه مجاهــدين هــم مرتــدين وګڼــل چــې تصــلب اواخلاص يې ټولې نړۍ تـه مسـلم دی ؛ داسـلام دښمنان يې پرېښودل اودهمدې القاعدې پرضـد جنګېــدل اولــه منځــه وړل يــې لــوی جهــاد وګڼلو؛کابوکــال وړانــدې چــې پــه شــام کــې دالقاعده دمشرانو اجـلاس روان و وربانـدې يـې ځانمرګی بريـد وکـړ اودشـام دالقاعـدې دهغـه مشرپه شمول چې پنځه ويشت کلونـه يـې پـه افغانستان کې جهاد کړی وټول قيادت له منځه يوړو .

سره لــه دې چــې اســلامي امــارت خپلــه توجوداصل دښـمن نـه، نـه را اړوي ؛ نـه داصـل اشغالګر دښمن نه پرته دنوروسره جنـګ کولوتـه خوشالېږي اونه ددښمن ارمانونه پـوره کېدوتـه پرېـږدي خودداعشـيانوخطرناکې ارادې ،بـدې کړنـې اودوحشـت اوظلـم نـه ډک شـاليدهم لـه نظره نه غورځـوي ؛ ولـس اومسـلمان ملـت دې مطمئن وي چې داسلامي امارت مجاهـدين بـه دخپلــو وينواوسرونوپــه قربــانۍ دشريعــت اوشريعت ته دوفاداروخسـلمانانونه دفـاع کـوي هيڅاته به دشريعت دفکـري يـاعملي تحريـف اجازه ورنکړي اونه به خپل ولس دکوم ظالم رحم وکرم ته پرېږي ان شاءالله تعالی.

مفتي ابومحمد حقاني

# دجهاد فقهي مسائل

## جهاد کې محرمات او مکروهات

## تبييت يا د کفارو پر ورانديې شپني عمليات

**تبييت:** په المصباح المنير کې ليکي :چې تبييت مصدر دی او دلغت له حيثه په لاندې معانيو کې استعمال شوی، چې داتولې معنی گانې نږدې يوې داسې معنی ته راجع کيږي ،چې دشپې مهال ديوه يرغل اوپر دښمن د عملياتي يرغل بڼه خپلوي ، لکه دشپې په تياره کې ديوه کار تدبير کول، دشپې مهال ديوه کار په باب کلکله پريکړه کول او دشپې مهال پر دښمن داړه غورځول، لکه پدې عبارت کې چې راغلی دي : مَصْدَرُ بَيَّتَ الأَمْـرَ إِذَا دَبَّـرَهُ لَيْلا ، وَبَيَّتَ النِّيَّةَ عَلَى الأَمْـرِ : إِذَا عَـزَمَ عَلَيْـهِ لَيْلا فَهِيَ مُبَيَّتَةٌ بِـالْفَتْحِ . وَبَيَّـتَ الْعَـدُوَّ : أَيْ دَاهَمَهُ لَيْلا .

پـه اصطلاحي معنی کې تبييت دلغـوي معنـی سره مـرادف دی او داواړه سره کـوم ډول توپير نلري، وَمِنْـهُ قَوْلـه تَعَـالَى : { أَفَـأَمِنَ أَهْـلُ الْقُرَى أَنْ يَأْتِيَهُمْ بَأْسُـنَا بَيَاتًـا وَهُـمْ نَـائِمُونَ } (سورة الأعراف / ٩٧ .) .

پردښمن دشپې لخوا ديرغل کولوحکم :

په (الموسوعة الفقية) کې ليکي چې :کله چې ددښمنانو سره دمسلمانانو دسولې معاهـده نوي او نه اهل ذمه وي، نودوئ کـې چې دچا قتل روا دی، پرهغـوئ دشـپې مهـال حملـه هـم جايز ده ،البته دوئ به هغـه کفـار وي، چې يـو ځل ورته دعوت هم رسيدلی وي ،او دوئ ترې انکـارکړی وي ،همداسـي يـې لـه جزيـې منلـو څخه هم انکار کړی وي، نو پردوئ دشپې لخوا يرغل وروړل روا دي ،امام احمد بـن حنبـل رح فرمايي: چې بيات يا دشپې لخوا پرکفارو حمله کول باک نلري ،دروم غزوات هـم ټـول دبيـات په شکل ترسره شوي او هيچا پر دښـمن دشـپې مهال په بريد کولوکوم اعتراض ندی کړی او نه يې پکې دکراهت څه قول کړی دی (قَالَ أَحْمَدُ

رَحِمَهُ اللَّهُ : لابَأْسَ بِالْبَيَاتِ ، وَهَلْ غَـزْوُ الـرُّومِ إلا الْبَيَاتُ؟ قَالَ : وَلا نَعْلَمُ أَحَدًا كَـرِهَ تَبْيِيـتَ الْعَدُوِّ ).

صــعب بــن جثامــه رضــی الله عنــه فرمايي :چې دحضرت رسول الله صلی الله عليه وسلم نـه مـې اوريـدلې دي، چـې دمشرـكانو داهاليو په باره كې بـه تـرې پوښـتنه كيـده،چې مـونږ پـرې دشـپې لخـوا حملـه وكـړواوددوئ ښـځې او بچيـان رانـه ووژل شي، دا بـه څنگـه وي؟نو ده صلی الله عليه وسلم بـه ورتـه ويـل، چې دوئ دهغوئ نه دي ؛ نو كه څوک ووايـې چې دا نومـوړی حـديث دصـحيح البخـاری او صحيح مسـلم ددې حـديث سره څنگـه تطبيق كيدای شي ،چې په هغې كې صراحتاً دښځو او ماشومانو له وژلو څخه منع او نهی راغلې لكـه پدط عبارت كې : (فَإِنْ قِيلَ : قَـدْ نَـهَى النَّـبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَتْلِ النِّسَاءِ وَالذُّرِّيَّـةِ أخرجــه البخــاري (٦ / ١٤٨ ـ الفــتح ـ ط السلفية)، ومسلم ( ٣ / ١٣٦٤ ـ ط الحلـبي)؟، په (المغنی)كې يې ددې پوښتنې داسې ځواب كړی، چې مونږ وايو چې داصـحيح ده ،چې دې حديث كې دكفارو دښځو او ماشومانو لـه قتل څخه منع شوې ده ،لكـن مـراد تـرې هغـه قتل دی او وژنه ده ، چې تعمداً او قصداً وي، نه داچې بالتبع يا يـې غيـر ارادي قتـل رامينـځ تـه شي ،نـو علامـه ابـن قدامـه رح پـه المغنـی كـې ليكـي چې ددواړو حـديثينو مينځ كـې جمع ممكن ده او هغه داسې چې نهی په تعمد باندې حمل ده او اباحت يې ددې نه په غير پـه نـورو صـورتونو كـې دی . (كـذافی المغنـي ٨ / ٤٤٩ مطبعة الرياض الحديثة .)

كــوم تطبيــق چــې ددې دواړواحــاديثو ترمينځ صاحب د(المغني )كړی دی، د(هدايـه شرح فتح القدير) كـې هـم (علامـه ابـن الهـمام رح) هم همداسې كړی او هغه هـم ويلـې چـې دكفارو دښځو او ماشومانو وژنه نـا جـايز ده، او كوم حديث كې چې د(هـم منهم)خبره، چـې داباحــت حكــم تــرې معلــوميږي، هغــه هاغــه صورت دی، چې مسلمانانو ته معلومـات نـوي، چې دلته گوندي ښځې او ماشـومان هـم ددې كفـارو شـته، او قصـد او اراده يـې هـم ددوئ دوژلو نوي كړي، لكه دفتح القدير پدې عبارت كې چې راغلي: (....فَيَجِـبُ دَفْعًـا لِلْمُعَارَضَـةِ حَمْلُهُ عَلَى مَوْرِدِ السُّؤَالِ وَهُمْ الْمُبَيِّتُـونَ ، وَذَلِـكَ أَنَّ فِيهِ ضَرُورَةَ عَدَمِ الْعِلْمِ وَالْقَصْدِ إلَى الصِّغَارِ بِأَنْفُسِهِمْ ، لِأَنَّ التَّبْيِيتَ يَكُـونُ مَعَـهُ ذَلِـكَ ، وَالتَّبْيِيتُ هُوَ الْمُسَمَّى فِي عُرْفِنَا بِالْكَبْسَةِ ، وَمَا الظَّـنُّ إلَّا أَنَّ حُرْمَـةَ قَتْـلِ النِّسَـاءِ وَالصِّـبْيَانِ إجْمَاعٌ. (فتح القدير ج١٢ص١١٢).

نوددي ځيرنې ښخه جوته شوه ،چې دکفارو دښځو او ماشومانو وژنه په اجماع سره حرامه شوه ،احناف رح ،حنابله رح وغيره دېولوپدې خبره اتفاق دی او دکوم حديث شريف نه چې اباحت معلوميږي ،هلته هغه صورتونه مراد د دي، چې مجاهدين يې دقتل ارداه ونکړي ،علم ورته ددوئ په موجوديت نوي او مقصودي حمله پرې ونکړي .

که چيرته دمسلمانانوامام يا جهادي قوماندان اسلام ته له دعوتولو مخکې دشپې مهال پر کفارو حمله وکړه ،گناهگار دی ،دليل يې دا آيت کريمه دی چې {فَانْبِذْ إِلَيْهِمْ عَلَى سَوَاءٍ } (سورة الأنفال / ٥٨) .

فقهاوپدې کې سره اختلاف کړی، چې که چيرته قبل الدعوة په تبييت يا شپني بريدکې کوم کافر ومړ،نو آيا ضمان پرې شته که نه ؟ په( الموسوعة الفقهية) کې ليکې :چې احناف او حنابله علماءرح پدې نظر دي ،چې ځنگه چې دوئ ايما ن نلري ،نو امان هم نه لري ،نو پر وژونکيو يې کوم ډول ضمان نشته او ځينې شوافع رح وايې چې ضمان پرې شته او ددې ضمان ديت او کفاره ورکول دي ، داخبره دامام شافعي رح نه نقل شوي ده ،لکه پدې حوالو کې دا مسئله ښه څرگنده ده (البحر الرائق ٥ / ٨٠ ، وابن عابدين ٣ / ٢٢٣ ، ومطالب أولي النهى شرح غاية المنتهى ٢ / ٥٠٧ ـ ٥٠٨ ، وروضة الطالبين ١٠ / ٢٣٩ ، ومغني المحتاج ٤ / ٢٢٣ ، والمغني لابن قدامة ١٠ / ٣٨٦ .).

ځيني فقهاوو ويلي دي: چې :اهل کتابو او مجوسيانو ته دعوت ورکول واجب ندي، ځکه دوئ ته دعوت رسيدلی دی او ددوئ کتابونو کې دحضرت محمد صلی الله عليه وسلم پر پيغمبرئ بشارتونه ورکړل شوي دي ،نو ددې اړتيا نه ليدل کيږي، چې بيا ورته دعوت له تبييت يا شپني يرغل نه مخکې له واجباتو ښخه وشميرل شي، البته دبت پرستانويا عبدة الاوثانو ته به له حملې نه مخکې دعوت ورکول کيږي (المغني لابن قدامة ١٠ / ٣٨٦).

هو! پر کفارو يا هغو قومونوچې يو کرت مخکې داسلام دعوت ورکول شوي وي ،هغوئ ته دويم ځل دعوت ورکول دمبالغة الانذار دنظريې له مخې مستحب دي او بل ددې لپاره چې دوئ پوه شي، چې مسلمانان پر دوئ حمله ددې لپاره نه کوي، چې گوندې ددوئ دمالونو يا اولادونو وږې دي، بلکې ددې لپاره چې ورته جوته شي، چې مونږ ددوئ ددين قبلولو تږې يو او ددې لپاره ورسره جهاد کوو،داخبره ثابته ده چې حضرت رسول اکرم صلی الله عليه وسلم چې کله دخيبر دفتحې بيرغ حضرت علی کرم الله وجهه ته

ورکاوه،نو ورته یې وویل :چې دوئ (اهل خیبر)ته دعوت (داسلام منلو دعوت )ورکړه ،داپداسې حال کې وه ،چې قبلا ورته دعوت رسیدلی وو،لکه دې عبارت کې دي: (وَقَدْ ثَبَتَ " أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : أَمَرَ عَلِيًّا حِينَ أَعْطَاهُ الرَّايَةَ يَوْمَ خَيْبَرَ وَبَعَثَهُ إِلَى قِتَالِهِمْ أَنْ يَدْعُوَهُمْ " (" أخرجه البخاري (الفتح ٧ / ٤٧٦ ـ ط السلفية)، وَهُمْ مِمَّنْ بَلَغَتْهُمُ الدَّعْوَةُ ).

دویم ځل دعوت ورکول یو مستحب عمل دی، واجب ندی ،نو ځکه ددې جواز هم شته ،چې لدې دویم دعوت پرته پرې دشپې مسلمانان غارت وکړي، لکه حضرت محمد صلى الله عليه وسلم چې دشپې مهال پر (بني مصطلق) باندې ددوئ دغفلت پر وخت حمله وکړه،او يا لکه ده صلى الله عليه وسلم چې حضرت اسامه رض ته همداسې امر وکړ(حديث : " عهد إلى أسامة أن يغير على ابني صباحا " أخرجه ابن سعد في الطبقات ( ٤ / ٦٦ ـ ط دار صادر) . وإسناده صحيح ) .

په (الموسوعة الفقهية) کې بيا ليکي: چې دماشومانو او ښځودعدم قصداو نه ارادې په صورت کې په زير زمينيو يا تاخانوکې دکفارو وژنه جايز ده ،همداسې پردوئ داوبو بندول او دلارو بندول ،ترخو تلونکې ورنشي هم روادي او د ادتبييت په معنى سره دى (وكذا يجوز قتل الكفّار في مطمورة إذا لم يقصد النّساء، والصّبيان ونحوهم ، ويجوز قطع المياه عنهم وقطع السّابلة وإن تضمّن ذلك قتل الصّبيان والنّساء، لأنّه في معنى التّبييت السّابق فيه حديث الصّعب بن جثّامة ولأنّ القصد إضعافهم وإرهابهم ليجيبوا داعي الله ، ويجوز الإغارة على علّافيهم وحطّابيهم ونحوهم (الموسوعة الفقهية الكويتية ج١٧ص١٧٣).

نوربيا ....

# ایډز

## د یرغل یوه بله کرغیړنه ډالۍ

(عبدالله)

ایډز هغه مهلکه ناروغي ده چې هر کال د ملیونونو انسانانو ژوند اخلي، د روغتیا د نړیوال سازمان د راپور په اساس هره ورځ په نړۍ کې ۳۳۰۰ تنه د ایډز له امله ساه ورکوي، یعني ایډز هره دقیقه د یو سړي ژوند اخلي، خو له نیکه مرغه د دې ناروغۍ څخه اسلامي نړۍ ترډېره حده خوندي ده، سبب یې دا دی چې په اسلامي نړۍ کې د غرب غوندې بې بندوباره ازادي او فحاشي نشته.

څېړونکي د ایډز عمده علتونه د مخدره موادو اعتیاد، ناخوندي جراحي عملیات او تر ټولو لوی علت یې ناروا جنسي-اړیکي او اخلاقي فساد په ګوته کوي.

اشغالګرو او لاسپوڅي رژیم یې افغانستان او افغان ولس ته خورا ډېر امنیتي، سیاسي، فرهنګي، اقتصادي، صنعتي، اخلاقي او عقیدوي زیانونه واړول، مثلا:

- په بې ۵۲ او ایف ۱۶ الوتکو، کروز راکټونو او خوشې بمونو یې ښځې او ماشومان شهیدان کړل.
- کلي، کورنه، فصلونه او شنه باغونه یې په بمونو او بلدوزونو وران ویجاړ کړل.
- په بهر او داخل کې یې زندانونه د افغان ولس له مختلفو قشرونو، بوډاګانو، ماشومانو او ځوانانو څخه ډک کړل.
- اخلاقي فساد ته یې وده ورکړه، زمینه یې ورته برابره کړه او د لا ترویج په موخه یې مختلف بنسټونه په مختلفو نومونو باندې جوړ کړل.
- اداري فساد یې اوج ته ورساوه، تر دې چې څو ځله افغانستان په نړیواله کچه اداري فساد کې لومړی او دوهم مقام وګاټه.
- قومي او لساني تعصب یې رامنځته کړ، ځیني پردي پال جهتونه او شخصیتونه یې

د دې لپاره استخدام کړي چې وخت ناوخت د واحد افغان ولس ترمنځ د کرکې او تفرق تخمونه وشيندي.

- په ځلونو يې د مسلمان ملت د مومن به کتاب ( قران عظيم الشان) بې عزتي وکړه او د اسلامي ارزښتونو او شعايرو سپکاوی يې تکرار کړ.
- افغان فرهنگ يې تحريف کړ او د غربي منحط او لغړ کلچر د دودولو په موخه يې د مدني او فرهنگي ټولنو په نوم گڼې گمراه کونکي او پردي پالي پروژې په کار اچولي دي چې افغان ولس په تيره ځوان کهول ته يې لوی تاوانونه رسولي دي.
- د تاريخ د مسخه کولو هڅې يې گرمې ساتلي.
- مخدرات، (هيروئين، ترياک، چرس او شراب) يې رايج کړي او د پير او پلور مارکيټونه يې ورته پرانستلي دي.
- د ايډز مهلکه ناروغي يې د افغانستان پاکې خاورې ته وارده کړه.

د وروستيو راپورونو په اسا س دا مهال افغانستان کې تقريبا ۹۰۰۰زره کسان د ايډز په ناروغۍ اخته دي او په زرهاوو نورو کې د ايچ آی وي وايروس ثبت شوی دی، متاسفانه چې د افغان ولس لپاره يو بد خبر دی.

د کابل د روغتيا وزارت په وينا ۸۷۴۱ تنه د ايچ آی وي په مرض ککړ کسان ورسره راجستر شوي دي، ځينې داسي کسان هم شته چې په همدې مرض اخته دي خو د شرم له وجې يې ځانونه نه دي ثبت کړي.

په افغانستان کې د غربي يرغل څخه مخکې ډيرو هيواوادالو د ايډز نوم بيخي اوريدلی نه و، خو د اسلامي امارت له سقوط څخه وروسته چې افغانستان ته پورته ذکر شوې ناخوالې او ناتراشي واردې شوې، له جملې يې يوه هم د ايډز تباه کونکې مريضي ده، په بل عبارت ايډز افغانستان ته د يرغل يوه بله کرغيړنه ډالۍ !! ده.

الله تعالی دې ټول امت په تيره افغان مظلوم ولس له دې ناروغۍ څخه وساتي

امين

# دا به نو وروستی جګړه وي!

ژباړن :عبدالمالک همت

د نولسمي پېړۍ په وروستیو کې په اروپا کې سیاسي او سیمه ییز حالت په ډېره چټکۍ سره بدلېده، د جرمني صنعتي پرمختګ هغه د اروپا یو سترځواک جوړ کړی و. د جرمني له ویرې د اروپا بل سترځواک برتانیه د سیمې د بېلو بېلو ځواکونو ملګرې سوه او د راتلونکو کلونو لپاره یې وار له مخې لا تدبیرونه سنجول پیل کړل.

په دې توګه د بېلو بېلو ځواکونو ترمنځ د نوو منطقوي اتحادونو جوړېدل پیل سول. برتانیې لومړی د جاپان سره په ۱۹۰۲ع.کال اتحاد وکړ. تر دې وروسته په ۱۹۰۴ع.کال د برتانیې او فرانسې ترمنځ هم یوه معاهده لاسلیک سوه، چې که څه هم دا یو بنسټیز اتحاد نه وو، خو د نږدې اړیکو د ټینګښت او د یوبل مرستي ته د وردانګلو لپاره د زښت زیات اهمیت درلودونکې وه. د دغسي دوستۍ یوه بله معاهده دبرتانیې، فرانسې او روس ترمنځ په ۱۹۰۷ع.کال د The Triple Entente) په نامه لاسلیک سوه، چې له امله یې اروپا پر دوو ګروپونو ووېشل سوه. د دې وېش یو پلو جرمني، اتریش، هنګري (مجارستان)، سربیا او ایټالیه وه او په بل طرف کې یې د روس، فرانسې او برتانیې هیوادونه ولاړ ول.

په بنسټیزه توګه دا د لومړۍ نړۍ والي جګړې لپاره چمتو والی وو، چې کېدای شوه هر وخت یې اور بل شي. لومړۍ نړۍ واله جګړه د شلمي پېړۍ لومړۍ لویه نړۍ واله شخړه هم بلل کېدای شي، خو اساساً دا تر یوې نړۍ والي شخړې زیاته د شلمي پېړۍ لومړۍ لویه نړۍ واله دسیسه وه، چې که څه هم د ۱۹۱۴ع.کال په اګست کې د اتریش د یوه پاچا زوی(شهزاده) فرانز فرډیناند د وژلو له امله پیل شوه، خو د دغې جګړې بنسټ پر دوو ګروپونو باندې د اروپا د وېشلو په بنه د نولسمي پېړۍ په پای کې ایښوول شوی وو. د لومړۍ نړۍ والي جګړې په بهیر کې د

اتحـــادي ځواکونو(برتـــانيې، فرانســـــې، سربيــــا او روس، جاپان، ايټاليې، يونان، پرتګـال، رومانيې او امريکــې) مقابلــه د محـــوري ځواکونـــو(جرمني، اتـريش، هنګـري او بلغـاريې) سره وه. د وېرې او ځـواک پـه نشه کې د نړۍ زيات هيوادونـه هـــم د دغـــي جګـــړې برخـــه وګرځېدل، خو د جګړې لومړنی جوش او خـروښ هغـه مهـال شوکه شو چې جګـړې د يـوې ډېرې ګران بيـې او د خنـدقونو دهولناک جنګ بڼه غـوره کـړه. ځکه چې په لوېديز محاذ کـې د خندقونو او کلابنديو لـړۍ تـر ۴۷۵ ميلو پورې غځېدلې وه.

په لومړۍ لويه جګړه کې روس د خپلـو اتحاديـانو د مرسـتې لپاره د بالکان له سـيمې او روم له سمندرګي ښخـه پـه تېرېـدو سره وړاندې ته. خو ښنګه چې د عثماني سلطنت پـر سـيمو او پولو(سرحدونو) باندې د روس له خوا تېري ترسره کېـدل، نـو عثماني سلطنت اړ شو چـې دې جګړې ته ورودانګي او پرېکـړه يې وکړه ،چې د خپلـو سـيمو د ژغـــورنې لپـــاره د محـــوري ځواکونو ملګرتيا غوره کـړي. د لـــومړۍ نـــړۍ والي جګـــړې پرمهال په ختـيځ محـاذ کـې د سيمې د ډېرې پراختيا له امله د ډېـــرو خنـــدقونو سره جګـــړه ممکنه نه شوه، خـو بيـا هـم د دغـي جګـړې شـدت د لوېـديز محاذ سره يوشان وو. دا ښنګـه چې جګړه نه، بلکې يوه دسيسه وه، ځکه نـو داجګړه(دسيســه) ورو ورو د اروپا له نورو سيمو ښخه را ټوله شوه او د عـثماني سلطنت په سيمو کـې محـدوده پاتې شوه. په لوېديز محاذ کـې په بنسټيزه توګه لـومړۍ نـړۍ والــه جګـړه د ۱۹۱۸ع.کـال د نومبر پـر ۱۱مـه د سـهار پـر يوولسو بجو پای ته ورسېده. له جګړې ښخه د جرمني تر وتلـو وروســته د محـوري ځواکونـو ملګري هم د ماتې سره مخـامخ شـــول او د جګـــړې د اســـاسي مقصد په پـام کـې نيولـو سره اتحـــادي ځواکونـــه د عـــثماني سـلطنت پـــه را پرځولـــو کـــې بريـالي شـول. دې حالـت پـر اسلامي نړۍ باندې ډېـر نـاوړه اغېز وښند. ښنګه چـې عـثماني سلطنت د جرمني ملګـری وو ، ځکه نو د دغې جګړې ډېر لوی تاوان پر عثماني دولـت بانـدې راغی.

انګرېزانو عربـان د ترکـانو پـه خلاف جګړې ته وهڅول او پـه دې توګه په عثماني سلطنت کې د مســـلمانانو تـــرمنځ قـــومي جګړې پيل شوې. په دې جګړو کـــې زيـــاتي ســـيمي د ترکـــو د واکمن له لاسه ووتلې او په پـای کې يې د مسلمانانو د يووالي او وحـــدت لويـــه نخښـــه عـــثماني خلافت هم له منځـه ولاړ. دغـه نړۍ واله جګـړه خـو ۹٦ کالـه دمخه د ۱۹۱۹ع.کال د جون پر ۲۸ مه د دواړو خواوو ترمنځ تر معاهدې وروسته ودرېده، اما د هغـــې اغېـــزې پـــه نـــړۍ والـــو، سياسي، اقتصـــادي او ټـــولنيزو ساحو کـــې تـــر راتلونکـــو ښـــو لسيزو پورې رواني وې.

لومړۍ نړۍ والي جګړې د ظلم او ځناورتوب پېښــي او کيســې ډېري کړې او د زغم او حوصلې جذبې يې خــورا ډېــري راکمــي کړې. لــه اتحــادي او محــوري ځواکونو څخه په دغه پيل سوې جګړه کي کرار کرار د نړۍ ډېر نور ولسونه هم د هغــې برخــه سوه او په دې توګه ټوله دنيـا د دغـــي جګـــړې پـــه اور کـــي وسوځېده. دغــه لويــه جګــړه د دې نړۍ په نوي تاريخ کي تــر ټولو زياته پوپناکوونکې جګـړه وه، په کومه کي چــي د لــومړي ځــل لپـــاره نـــوې ټکنـــالوژي وکـــارول ســوه. د لــومړي ځــل لپـــاره نـــړۍ د کيميـــاوي او زهرجنو ګازو استعمال وليـد. دا لومړنی جنګ وو چي پر سمندر سربېــره لــه فضــا څخــه هــم بريدونه پکښي کېدل. پـه دغـه لويه جګړه کي د دوارو خــواوو څه له پاسه شل مليونه پوځيـان او عام وګړي له منځــه ولاړل او شاوخوا شل مليونه افراد د تــل لپاره معلول او معيوب سول.

درنـــو لوســـتونکو! دادی همـــدا اوس يوځل بيا د لــومړۍ لــويي جګړې وحشت او ځناورتوب تر سترګو کيــږي. هغــه نــړۍ وال جنګ چي لامــل او محــرک يــې مازي د يوه پاچا زوی وژنــه وه او دغه وژنه يې پلمه کړه له يوه پلوه تر شلو مليونو زيات وګړي د مرګ کومي تــه ورټېــل وهــل سول او لــه بلـه پلــوه يــې لــه جګـــړې څخـــه ډېده کـــوونکی عثماني سلطنت هــم پــه جګــړه ورګډ کړ او ټوته ټوته يې کړ.

په لومړۍ نړۍ واله جګــړه کــي هم روس د ترکيې پر پولو تېری وکړ او ترکيه يې په جګــړه کــی داخلېــدو تــه اړه کــړه او دا دی اوس بيــا د لــومړۍ نــړۍ والي جګــړې غونــدي د ترکيـــې پـــر فضـــايي حـــريم بانـــدي تېـــری کوونکي مازي د يــوې روســـۍ الوتکي د را غورځولو پېښه پلمه کوي نه داچي يوازي د درېيمـــي نړۍ والي جګړې خبري کيــږي، بلکي د اسلامي نړۍ پــر خپلــو پښو ولاړ ځواک (ترکيې) د بيـا راپرځولــو او مــاتولو بحثونــه روان دي.

دا حقيقت دی چــي ســل کالــه دمخه د اروپــا ناروغــه وګــړي، يعني ترکيې ګرد سره د جګــړې کولو وړتيا نه درلوده. دغه لامل وو چي نه ترکيې د اتحاديــانو د دسيسو مقابله وکړای شــول او نه يې خپلي ســيمي وژغــورلای شوې. خو روس تــه ښــايي نــه وي معلومه چــي اوس ترکيــه د اروپا هماغه نــاروغ وګــړی نــه دی، بلکي کــه څــه هــم اتــومي ځواک نه دی، خو ترکيه د خپلو پاليسيو او اقتصادي پياوړتيا له امله د اسلامي نړۍ مخــکښ او ځواکمن هيواد دی. موږ پــه دې باور لــرو ،چــي اوس مــازي د يوې پېښي په پلمه درېيمه نړۍ واله جګــړه نــه شي نښــلېدلای، خو که خدای مکړه داسي وشوه نو دا به وروســتۍ جګــړه وي. پای.



# موږ ولې په اسلامي امارت عاشقان یو؟

لیکنه . بدرالافکار

له اسلامي امارت سره مینه آسانه مینه نده!

په دې مینه کې د کور کلي پرېښودل شته

په دې مینه کې د زندان تورو تمبو ته ورتلل، په بدن زخمي زخمي کېدل او د دنیا ژوند ته د الوداع ویل شته!

په دې مینه کې تورونه دي

په دې مینه کې تهمتونه دي

په دې مینه کې له خپلو خپلوانو او دوستانو له لوري ترټل او رټل شته

خو موږ ولې دومره دردونه او کړاوونه ګالو ؟

ولې موږ په اسلامي امارت عاشقان یو ؟

ولې یې له موږ نه زړه وړی ؟

ولې مو زړونه نه ترې صبرېږي ؟

ولې یې په مینه کې د زړګي نرۍ نرۍ درد راته د دنیا له ټولو لذتونو خوندور ښکاري ؟

موږ ملامت نه یو

د اسلامي امارت ښکلا یرغلیزه ده

په هر سپیڅلي زړه برید کوي

هر زړه له ځان سره یرغمل کوي

هر زړه یې د مینې په لومه کې ژر راګیر کېږي

اسلامي امارت د ځوریدلو افغانانو له سر څخه د شر او فساد خپسه لرې کړه

هغه خپسه چې د دوی ژوند یې تنګ کړی ؤ

د دوی په مرۍ یې پښه ایښې وه

اسلامي امارت زموږ ځوریدلی ولس بند په بند له بېلیدو نه وژغوره او په سینه ناسته د تجزیې بدرنګه بلا یې پرمخې په ځمکه راوویشته

اسلامي امارت زموږ د ځوریدلي ولس له ګډ کور افغانستان څخه د بیت المال لوټ شوي مالونه بیرته راټول کړل ، ظالمان ، د تیریګرو او لارې وهونکو له لاسه یې د ظلم خنجر واخیست

ټول ګټې تأسیسات یې په پښو ودرول ، فساد یې نابود کړ او د یو پیاوړي مرکزي حکومت په کوثر یې د انارشۍ له رنځ نه د افغانانو رنځ ټکور کړ

اسلامي امارت زموږ ځوریدلی او ترهیدلی ولس د اسلامي شرعي نظام له یخ سیوري لاندې دمه کړ

اسلامي امارت زموږ د ځوریدلي ولس ټولنیز مرضونه د امربالمعروف او نهی عن المنکر په درملو درمان کړل

اسلامي امارت زموږ په ولس کې د ملا او مکتبي تر منځ توپیر ورک کړ او د مدرسې او مکتب تر منځ یې د توازن کرښه راوباسله

اسلامي امارت زموږ د ولس صورت او سیرت په نبوي سننو ښکلی کړ.

اسلامي امارت زموږ د محبوب مدني جانان صلی الله علیه وسلم د وطن پردیسان په خپله غیږ کې ونیول د ترحم او شفقت لاس یې پرې راتیر کړ.

اسلامي امارت امت له پیړیو وروسته د اسلامي نظام د پلي کولو په خوند پوه کړ ، نوی ژوند یې وروبانښه او دې ته یې چمتو کړ چې د ظالم ګریوان ته د خپلو تروړل شوو حقوقو د اعادې لپاره لاس ورواچوي.

اسلامي امارت د هر مظلوم مسلمان اوښکې پاکې کړې او د دوی په حق کې یې غږ اوچت کړ

اسلامي امارت خپل ځان څو پردیسو مسلمانانو ته سپیلنی کړ خو دوی یې کفارو ته په لاس ورنکړل.

اسلامي امارت د کلیسا په شپیلي راوتلی صلیبي ښامار ټوکر ټوکر او بیرته یې په خپل غار ننویست.

اسلامي امارت د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله او ملا اختر محمد منصور حفظه الله په څېر سپیڅلي ، غیرتي ، زړه سوانده ، د امت په درد دردمن او د امت یووالي ته ژمن زعیمان امت ته وړاندې کړل.

داسې زعیمان چې د امت شمله یې هسکه کړه ، تل به امت پرې ویاړي او سراسر افتخار او ویاړ دي.

# د هیواد د زخمونو یوګمنام طبیب وفات شو

**قاري حبیب**

تېرکال

همدا شپې ورځې وې،چې له مرحوم ملا الله داد طبیب سره مې لیدنه وشوه،د نوموړي نوم مې له ډېر پخوا د طالبانو له شریعت غږ راډیو اورېدلی و،خو مخامخ مجلس مې ورسره نه و شوی،ملا الله داد طبیب چې پنځه کال د افغانستان د مخابراتو وزیر پاته شوی و، په یوه عادي او په غالب ګومان کرایي کور کې اوسېده،دده د کور او نورو خلکو د کورونو ترمنځ کوم توپیر نه و، له خبرو، ظاهري چلند او اقتصادي حالت څخه هم داسې نه برېښېده چې دا سړی دی یو وخت د کوم هیواد وزیر پاته شوی وي،دغه مهال چې د معدې سرطان ځپلی و رنګ یې زیړ تښتیدلی او د خبرو په مهال یې ژبه وچه وچه کیدله.

ملا الله داد طبیب آرام ، متواضع او سنګین شخص و، په څو ساعته مجلس کې یې د هیواد د مخابراتو په اړه داسې معلومات راکړل لکه له کوم کتاب یاليکليو یاداښتونو له مخې چې غږیږي،د افغانستان د مخابراتي سیستم په برخه کې د ورانیو او ملي شتمنیو د تباهۍ کیسه یي په ډېر افسوس وکړه، ویې ویل چې په کابل کې د طالبانو د حکومت له پیل سره دمخابراتو وزارت په داسې حال کي وروسپارل شو،چې د هیواد د مخابراتي سیستم اتیا فیصده امکانات په داسې ډول له منځه تللي و چې حتی د ټیلفوني لین د انتقال پایې هم په برقي ارو باندې غوځې شوې او د کباړ په بیه پلورل شوي وې.

ده وویـل چـې د طالبـانو د واکمنـۍ لـه پیل سره یې د مخابراتو په برخه کې کار له صفر څخه شروع کړ،په لـومړي ځـل یـې پـه لویـو ښـارونو کـې د بې سیم او رادیـو ریـلي زړې دسـتګاوې تـرمیم کـړې چـې پـه توسـط یـې د ولایتـي مرکزونـو ترمنځ اړیکې فعالې شـوې وروسـته یـې لـه نـړۍ سره د افغانسـتان د مخـابراتي اړیکـو دنښـلولو لپـاره پـه کابـل کـې د مایکروویف زوړ سیستم فعال کړ چې د ننګرهار او پیښور له لارې یې هیـواد لـه نړۍ سره وتاړه.

خـو څرنګـه چـې د هیـواد مخـابراتي سیستم ډیر زوړ او د استهلاک پړاو یـې بشپړ کړی و تردې چې د ترمیم لپـاره یـې پـرزې هـم نـه پیـدا کیـدلې نـو ځکـه د اتصالاتو په برخه کې د نویو سیستمونو په فعالولو غور وشو، چې په ټولـو لویـو ښـارونو کـې د ډیجیټـل ټیلفونونـواو یـا انترکم شبکې فعالې شوې چې هرې یوې زرګونه لینونـه درلودل او هیوادوالـو تـه یې له کلونـو وروسـته د تیلفـوني اړیکـو زمینه برابره کړه.

دغـه راز دمخـابراتي پرمختـګ پـه برخـه کې د نړیـوال سـټلایټ ټیلفونونـو د ګڼ شمیر ګوشیو جوازات تقسیم شول چې هیوادوالو ته یې د نړیـوالې مخـابرې پـه برخه کې لوی سهولت رامنځ ته راکړ،پـه دې سربیـره د هغـه مهـال دمخـابراتو وزارت یـو لـوی پـلان د عـامو مبایـل تیلفونونو د شبکو فعالیت و، چې د ملا الله داد اخنـد پـه ابتکـار یـې لـه یـوه امریکایي شرکت سره تـړون لاسلیک او په لومړي پړاو کـې د ۳ لکه مبایـل سیم کارتونو د تقسیم په پـروژه تعهد وشو چې دغه پروژه بـه د افغـان بي سیم پـه نـوم د یـوه سهامي شرکـت لخـوا اجـراء کیدله چې اتیا فیصده ونډه د کمپنیو او شل فیصده یې د مخابراتو د وزرات وه، امریکـایي ظالمانـه بنـدیزونو او د ملـل متحد د امنیت شورا بې انصافه پریکړو د طالبـانو د ګڼـو نـورو انکشـافي پـروژو غوندې دا پروژه هـم معطلـه کـړه، تـردې چې لـه امریکـایي یرغـل وروسـته یـې د بندیزونو له پورته کیـدو سره پـه هماغـه نـوم پـروژه تطبیـق شـوه چـې اوس د

گرځنده اتصالاتو په برخه کې پیشرفت د افغانستان تر ټولو مثالي پرمختګ بلل کیږي، هغه چې کریډیټ یې د کرزي حکومت او دمخابراتو وزیر امیرزي سنګین ته ورکول کیږي په داسې حال چې په دې برخه کې لومړنی او بنیادي کار د هیواد د یوه ګمنام خادم مرحوم طبیب صاحب لخوا ترسره شوی و.

طبیب صاحب د اتصالاتوپه برخه کې پنځه کاله د افغانستان لومړنی مسؤل شخص و، خو دغه رښتینی خادم چې په کوم حالت کې کابل ته تللی و په هماغه حالت کې له وزارت څخه راووت،نوموړي خو نه په کابل کې کوم شخصي کور واخیست او نه یې هم د اختلاس او غصب په پیسو کوم ښهرک جوړ کړ، نه د بلند منزل خاوند شو او نه یې په دوبۍ کې ځمکې یا په شرکتونو کې ونډې واخیستې.

هغه د یوه اسلامي او سپیڅلي نظام په سیوري کې په پوره اخلاص د هیواد د ودانۍ هڅې وکړې،هغه هرڅه دخپل اولس د هوساینې او سهولت لپاره وکړل او په خپله یې له ستړیا،ستومانۍ اوسختیو تیرولو پرته هیڅ برخه هم د ځان ونه بلله .

هغه بالاخره په داسې حال کې د کډوالۍ په کور کې له دنیا څخه رخصت شو چې خپل اولس ته یې یوازې د ویاړ کارنامې پریښودې.

سړی چې د هیواد ددې ګمنام طبیب ژوند او بې ریا کارنامو ته ګوري او بیا د کابل په دوه سري رژیم کې د غلا، فساد،اختلاس او د کابل بانک، خلیل فیروزي او احمدضیاء مسعود د داړماریو کیسې اوري نو سړي ته هماغه د الفت صاحب بیت وریادوي چې:

ډیر تفاوت شته په انسان کې د معنی په لحاظ

واړه لګیا دي ځیني ځان ځیني جهان جوړوي

الله تعالی دې په طبیب صاحب ورحمیږي او جنت الفردوس دې ورته نصیب کړي . آمین




## دشمن معیارها را تعویض میکند

صفت الله (ثاقب)

الحمد لله و الصلاه والسلام علی رسول الله أما بعد:

الله سبحانه وتعالی خالق آسمانها و زمین آگاه از ظاهر و باطن بخاطر هدایت انسانها مطابق فطرت بشری نظام فرستاده که عزت و کرامت صلح و آرامش دائمی را عمل و پیروی در معیار های ارزشمند آن قرار داده است مسلمانان همیشه در جنگ علیه کفار غلبه حاصل کرده اند دلیل پیروزی مسلمانان در مبارزه و جهاد وسایل مادی نبوده بلکه پیروی از شریعت و احکامات الله سبحانه وتعالی بوده دشمن مکار با درک این خبر آغاز به جنگ فکری کرده با شستشوی مغزی وتبلیغات گسترده معیار های اصیل اسلامی را تبدیل کردند که شیر را روبا و روبا را شیر، صادقین را کاذبین و کاذبین را صادقین، حق را باطل و باطل را حق جلوه دادند.

دشمن با انحطاط فکری کسانی را که مصروف لهو و لعب، اداکاران فلم و بازیگران، فوتبالستان، کرکتیها، رقاصه ها، که در چتر بی پروائی وبی غیرتی شب را روز و روز را شب میکنند آنها را هوشیاران، هنرمندان، عاقلان و الگو و نمونه به اجتماع و جوانان پیشکش می نمایند؛ در حالیکه رسول الله صلیالله علیه وسلم میفرماید: «زیرك و هوشیار کسي است که نفس خویش را مورد محاسبه قرار داده و براي بعد ازمرگش تلاش و کوشش نماید.»

روزیکه معیار آزادی امت این بود که "بنده گان را از بنده گی بنده به بنده گی الله بکشانند."

امروز عکس آن کسانیکه از شریعت و قانون الله سبحانه وتعالی سر باز می زنند و بندگی بنده را میکنند، تن ذلت را به قانون فرسوده دست بشر دیموکراسی و جمهوریت میدهند آزاد و مترقی می نامند.

پس به هوش باش! دشمن معیار ها را می بدلند...

دشمن بخاطر تعویض معیار های ارزشمند اسلام وسائل مختلفی را مورد استفاده قرار داده اند مانند معلم، کتاب، مکتب، دانشگاه، کتابخانه ها، مجلات، ادبیات، پارکها، کلپها، رادیو، تلویزون، تیاترها، سینما، انترنت، ستلایت، کمپنیهای فلم سازی، و شخصیتهای سیاسی و وسائل مشابه دیگر همه بخاطر اغوای افکار مسلمانان و در تلاش تغییر روند فکری اشخاص و ملتها با مهارت عالی در میدان جنگ علیه اسلام و مسلمانان به پیمانهء وسیع که همهء جوانب زنده گی انسانی را احاطه نموده و ده ها هزار مؤسسهء غربی دیگر در آن مصروف کار اند.

کافران و مشرکان پیوسته و متواتر با مسلمانان می جنگند تا اینکه مسلمانان را از آئین آنها بگردانند درین مورد الله سبحانه وتعالی میفرماید: وَلَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا ﴿البقرة: ٢١٧﴾ ترجمه: و مشرکان، پیوسته با شما می‌جنگند، تا اگر بتوانند شما را از آیینتان برگردانند؛...

در نهایت به فرزندان امت اسلامی نظریه و طرز تفکر اقبال را نقل میکنم که جوانان امت اسلام را توصیه نموده میگوید که گوهر غرب قابل نگهداشتن نیست، و مشک آن قابل بوئیدن نیست، زیرا گوهرش آشفته بوده، و مشکش از نافهء آهو نه، بلکه از ناف سگ است، فیلسوف شرق میگوید:

گوهرش تفدار و در لعلش رگ است

مشک این سودا اگر از ناف سگ است

کابل، افغانستان

مفتي ابوماريه

# د مورچل دارالافتاء

## که داستشهادي مجاهد په حمله کې یومسلمان وګړی ووژل شي شهید ګڼل کیږي ؟

استفتاء : که داستشهادي (فدائي ) مجاهد په هغه برید کې چې په یرغلګرو یادهغوئ په جاسوسانو اوملګرو باندي یې کوي یوعام مسلمان لاروی شهیدشي غسل اوکفن ورکول کیږي اوکنه ؟ یوطالب

الجواب : حامدا ومصليا وبعد: هو په ذکرشوي صورت کې دغه ولسي مسلمانو وګړو چې شهیدان شي غسل اوکفن دواړه ورکول کیږي ،ځکه دوئ دحکمي شهیدانو په ډله کې دي اوحقیقي شهیدان نه ګڼل کیږي .

في المبسوط للسرخي ١٠\٦٦ ولا بأس بإرسال الماء إلى مدينة أهل الحرب وإحراقهم بالنار ورميهم بالمنجنيق وإن كان فيهم أطفال أو ناس من المسلمين أسرى أو تجار...الخ

وفى الفتح القديرج ٢ /١٠٣ باب الشهيد: اورمى مسلم الى الكفارفاصاب مسلماونفرت دابة مسلم من سوادالكفاراونفرالمسلمون فاالجوهم الى خندق اونار ونحوه فاالقوانفسم اوجعلوحولهم الحسک فمشى عليهامسلم فمات لم يكن شهيدا ... ولكنا نقول: أمرنا بقتالهم فلو اعتبرنا هذا المعنى أدى إلى سد باب القتال معهم فإن حصونهم ومدائنهم قل ما تخلو من مسلم عادة أه

وفی البدائع ۲ / ۱۱۰ ولوانهزم المسلون فؤطئت دابة المسلم مسلما وصاحبها عليها اوسائقها اوقائد غسل أه، وكذلک لورمی مسلم الی المشرکین بسهم واصاب سهمه رجلامن المسلمین فقتله یغسل

ومثله في ردالمحتار۱ / ۶۷۱ ومثله فی الهندية ۱ / ۱۶۸

## په مجاهدباندي ديت اوکفاره شته ؟

**الاستفتاء** :محترم مفتي صاحب!که یومجاهد په یرغلګرو برید وکړي مګر په دې ترخ کې عام ولسي- وګړی ووژل شي نوديت يې په مجاهدينو باندي شته اوکنه ؟ یوطالب

**الجواب** حامدا ومصليا وبعد:نه ، په ذکرشوي صورت کې ددغه وژل شوي تن په قاتل مجاهدباندي قصاص اوديت دواړه دضرورت له أمله نشته .

وفي المبسوط للسرخي ۱۱۰\۶۶ إلا أن على المسلم الرامي أن يقصد به الحربي .... فإذا عجز عن ذلك كان عليه أن يميز بقصده لأنه وسع مثله ولا كفارة عليه ولا دية فيما أصاب مسلما منهم لأنه إصابة بفعل مباح مع العلم بحقيقة الحال والمباح مطلقا لا یوجب علیه كفارة ولا دية لمافی البدائع ج ۶ / ص ۶۳ ولابأس برميهم باالنبال وان علم ان فيهم مسلمون من الاساری والتجارلمافيه من الضرورة اذحصون الكفرة فلماتخلومن مسلم اسيروتاجرفاعتباره يؤدی الی انسداد باب الجهادولكن يقصدون بذلک الكفرة دون المسلمون لانه لاضرورة فی القصدالی قتل مسلم بغيرحق وكذااذاتترسواباطفال المسلمين فلابأس باالرمی اليهم للضرورة اقامة الفرض .

## دجهادپه سفرکې تیمم:

**الاستفتاء:** محترم مفتي صاحب ! موږ مجاهدين په سفرکي وو دلمانځه وخت راباندي راغی موټرسيکلان مو ودرول ، شاوخوا مو وكتل اوبه نه معلوموميدې ، بس تيمم مو وواهه، لمنځونه مو وکړل ، نوپوښتنه داده : چې زموږ دغه لمنځونه صحيح دي اوكنه ؟ ځکه موږ په اوبو پسې ګرځيدلي نه یو، یومجاهد.

**الجــواب** حامداومصلیاوبعد:دمســافرپه هکله دفقهي کتابونـه لیکـي :کـه چیرتـه مسافر په ابادیوکي روان وو، نو لومړی بـه داوبو طلب کوي ،که يې چیرته پیدانکړې ،بیابه تیمم وهي ؛ځکه ترطلب مخته تمیم نـه دی ورتـه روا، اوکـه چېرتـه پـر دښـتو روان وو اوغالب گومان يې شو، چي اوبـه نژدې دي اویاچـاخبر ورکـړ بیابـه داوبـو طلب کوي ، البته دغه اوبه به تریـوه میـل په کمه مسافه کي وي کـه تـردې لـري وې ،بیادې طلب نه کوي ځکـه کـه چېرتـه دا اوبـو پسيـ گرځـي، ده تـه هـم تکلیـف رسـیږي ،چــې لــه ملگــرو جــلا شــو اوملگروته يې هم تکلیف رسیږي ،چي ده ته به انتظـار کـوي . اوکـه يـې غالـب گومــان داوه ، چــي نــژدې اوبــه نشــته نوشاوخوادې يې وگوري، کـه داوبـو څـه علامې نه ښکارېدې ،نو ورپسي گرځي دې نه، بس تیمم دې ووهي اولمونځ دې وکړي، لمونځ يې صحیح دی .

لمـافی المحیط البرهـاني ١ / ٢٩٩ :  ٥٢٢ـ ومـن جملـة الشرـائط : طلـب المـآء فـی العمرانات ، حتی لوتیمم فی العمرانات قبل الطلب لایجزئـه التیمم ، وهـذابلاخلاف ، وأمــافی الفلــوات ، لایشــترط الطلــب عندنا ... لان الظاهر فی الفلوات عدم المآء ، بخلاف العمرانات ،لأن العدم مـن حیـث الحقیقة ان کان ثابتا، فمـن حیـث الظـاهر غیرثابـت ،فـان قیـام العمرانـات بالمـآء ... اذاغلب علـی ظـن المسـافر أن بقربـه مـآء، لوطلبه وجده ، أوأخـبره بـه ، وجـب علیـه الطلب بالاجماع . وانما الخلاف فـیما اذالم یغلب علی ظنه ذلک أولم یخبربه .

ولمافی فتح باب العنایة بشرـح النقایـة : ١ /١١٩ والظاهر أنه یجب علیه الطلـب مـن جانــب ظنّــه مایقــدر (قــدرغلوة) وهــی : مقدار رمیة وهو الصحیح (ان ظنّه قریباً) .

و لمافی تبیین الحقـائق : ١ / ٤٤ ( ویطلبـه غلوة ان ظن قربه والا لا) ای ویطلب المـآء الی غلوة والغلوة مقدار رمیة سـهم ان ظـن انّ بقربه مآء لان غلبة الظن یوجـب العمـل کالیقین وان لم یظن فلایجب علیه الطلب .

## شهيدته دويم وار لمونځ وركول

**الاستفتآء :** محترم مفتي صاحب ! يوشهيد يـوه مياشـت وړانـدي شهيدشـوی ،اوهغـه مهــال پــرې غالبادجنـــازې لمـــونځ شــوی ،اوس مــو لــه قــبره را وكــيښ ، دجنازې لمونځ ته ضرور شته كه نه ؟

الجـواب حامـدا ومصـليا وبعـد:دجنازې لمـونځ يوځـل كـول كيـږي ،نوكـه چيرتـه لمونځ پرې نـه وي شـوی، بيـا لمـونځ پـرې كيږي ، اوكه چيرته لمونځ پرې شوی وي ، بيا اعاده نه غواړي، البتـه كـه چيرتـه دولي (قريب ) بې اجازې بل چا پرې لمونځ كړی وي، نوبيـا ولي كـولای شي، چـي بيرتـه دجنازې لمونځ اعاده كړي .

-لقوله عليه الصلوة والسلام لعمر رضى الله تعالى عنه : انّ الصلوة علـى الميـت لاتعـاد. اخرجـه ابـوداؤد فـى سـننه بـرقم :۲۵۳۳ ، واسـناده ضـعيف وبهـذا الاسـناد الضـعيف اخرجه الدارقطنى فى سننه :۲ / ۵۷

وفي بيـين الحقـائق : ۱ / ۲۴۰ فـان صـلى غيرالولى والسلطان اعـادالولي ،لماذكرنـا أن الحق له قال رحمه الله ولم يصل غيره بعـده أى بعد ماصـلى الـولى وكذابعـدامام الحـى وبعدكل من يتقدم على الولى .

ولمافى البدائع والصنائع : ۱ / ۴۷ ولايصـلى على ميـت الا مـرة واحـدة ، لاجماعـة ولا وحـدانا عنـدنا،الا أن يكـون الـذين صـلوا عليهــا اجانــب بغيــر امــر الأوليــآء ،ثـم حضرالولي فحينئذ له ان يعيدها.

و لمافي الهنديـة : ۱ / ۱۶۳ ولايصـلى علـى ميت الا مرة واحدة والتنفل بصلاة الجنـازة غير مشروع كذافى الايضاح .

وفى درالمختار على صـدر ردالمحتـار : ۲ / ۱۴۴ فان صلى غيره أى : الولي ممن ليس لـه حق التقـدم علـى الـولي ولم يتابعـه الـولي اعادالولي ولو على قبره ان شآء لأجـل حقـه لا لأسقاط الفرض.

# دشهید قاری فضل الله (سلیم)

## پر جهادي ژوند څو کرښې!

(مفتي ابو محمد)

دشرق ستر نابغه ،نوموتي عالم او پیاوړي مفکر علامه سید جمال الدین افغاني رح څه ښه ویلي چې :دشرق نومیالي شخصیتونه ، منل شوې څيرې او علماء یا پوهان چې کله ژوندي وي، نو مړه دي، خو چې کله مړه شي، نو بیا ژوندي شي ،رښتیا هم چې ختیځ کې چې کوم نوماند شخصیت ژوندی وي ،نو څوک یې په قدر او منزلت نه پوهیږي او که پوهیږي نو بیا تري دتمجید او قدرداني مراتب سپموي ،دناڅرګندو او څرګندو وجوهاتو پر بناء یې نمانځنه یا ستاینه نه کوي او دهغه رواني سایکالوژي دنهیلیو له ګردابه نه وباسي،بلکې غندي یې او ډیر ورته کمزوري ښکاري ، خو چې کله هغه نامتو،نومیالی ،عالم، فاضل شخصیت ومري او نور ددنیاله کدورت سره خدای ج په اماني وکړي ،نو بیا پرې دهرچا د سینو له آسمان څخه دمرثیوو باران وي،نه یې دنمانځغونډوشمیر معلوم وي او نه ورته دستاینو قالب ټاکل شوی وي ،هرڅوک هر ځای کې دقال اوحال په تراشل شوي ژبه او پخپله مداحه لهجه دده په مدحه او صفت بوخت وي ،عام او خاص ټول په یوه خوله وایې، چې کاش چې مو ددې نوموتې اونومورکې علمي ،سیاسي ،جهادي یا ټولنیزشخصیت مقام په ژوندکې پیژندلای وی ! کاش چې دده مو ډیر درناوی په ژوندکې کړی وی او کاش چې مو دده په ژوند کې دده د افاقیت او بهانده دریابه ډیره بهره او ګټه اخستې وی

اوکاش ....اوکاش .....خو دا بیا دوخت نه تیرې خبرې او تش آفسوسونه وي، چې کومه گټه او فایده نلري او هغه (اولی النعمة) یې لاله مخکې لاسه وتلی وي ،هغه څه (آب حیات )نوي څښلې چې تل تر تله ژوندی وي اونه د(حضرت خضر ع) غوندې طویل عمر لري، بلکې همدومره لږعمر یې دډیرو بهرو او کانارمو سمبول وي !

دادومره ستومانه کوونکې مقدمه مې ددې لپاره ددې قاري شهیدرح له ژوند لیک یا سوانح حیات څخه دمخه ددې لپاره ولیکله، چې دا په ټولیزه توگه زمونږ دټولنې یو نه حل کیدونکې ستونزه ده او مونږ لاهم پدې بشپړنه یو توانیدلې، چې دې مشکل ته کوم معقول حل راوباسو او دې ټولنې ته دورپیښو ناخوالیو درملنه پرې وکړو.

شک نشته، چې قاري فضل الله (سلیم)شهید، یو دداسې نومورکیو مجاهدینو څخه و،چې خپل ژوندیې نږدې ټول جهادي چارو ته وقف کړی و،ټولنیز ژوند ته یې شا کړي وه او دروان جهادي مقاومت دقافلو دجرس شرنگارته یې دبدرگوتمثیل وړاندې کاوه ،ړومبی دمدرسې طالب ،بیا دمورچل عادي مجاهد، بیا دلگی مشر۔ او بیا دننگرهار دگوشتې ولسوال شو،خو ددې فقید شهید چا په ژوند کې اخلاقي او فکري منزلت تر پایه ونه پیژانده او نه دده دشان سره مناسبه قدرداني یې چا و کړه ، خو دا ښاغلی شهید ددومره ډیروعلیاوو صفاتو درولودونکی و،چې دا صفات دده دژوند په خوږلنیو کې له علم مشاهدې پټ ،خو تر شهادت وروسته وروسته خلکو ته وځلیدل او دکفن او دفن پروخت ولسونوپخپل پلرني ټاټوبي (تاریخي چاردهي )کې دجنازې په (۱۸)وو اوږدوصفونو دکائناتو رب ته دده لپاره دمغفرت لاسونه پورته کړل او دشهید قاري سلیم روح ته یې دجنت الفردوس دعاگانې وکړي .

هو !

شهید قاري فضل الله (سلیم)دننگرهار ولایت دبټي کوټ ولسوالۍ دچاردهي دکلي اوسیدونکی په (۱۳۵۸هش)نیټه دصفرالمظفر په میاشت کې ددوشنبه په ورځ دمرحوم (محمداعظم )په کاله کې دې فاني دنیا کې

سترگې پرانستې، چې دمشفق او زهير پلار (مرحوم محمد اعظم )له نعمته بي برخې شوى و او دده لـه پيدا ينبت څخـه(۷)مياشتې مخکـې يـې والـد صـيب وفـات شـوى و،نومړې له پيله ديتيمۍ څپېړه وخوړه او دسختيو او تکاليفوپه چاپيريال کې يې خپل نيمګړى ژوند پيل کړ ،بلوغ ته ورسيد ،ستر شو،په (۱۳٦۲هش)نيته دروسي وحشت څخه دنـورو افغانـانو غونـدې دخپـل مشرـ ورور مجاهد،مبلغ او فکري مسلمان محترم (مولوي فاتح الله فاتح) او خپلې دردیدلې کونډې مور سره دهجـرت ديـار دپاکسـتان زاخيلـو مهاجرپنـدغالي تـه مهـاجر شـو،بيا دخپلوماشـومانه شـوخيو سره سره ددينـي مدرسې انګړ ته ننوت، دقرآن کريم پـه حفظ يې پيل وکړ،په (۱۳۷۴هش)کال کې دقرآن کريم حافظ او دستار فضيلت ورتـه دنوښار دپير سباق پـه تعليم القرآن مدرسـه کـې دمدرسـې دمنتظمينـو لخـوا پـر سروتـړل شو،ورپسې متصل يـې پـه فنونـو پيـل وکـړ او(دارالعلوم اسـلاميه زاخيـل بـالا ،تعلـيم القرآن پيرسباق او دمردان په مختلفو مدرسو کې يې پرلپسې ديني کتابونه لوستل ،تر (۵)درجې پورې يې کتابونه ولوستل ،چې دا هاغه وختونه وو،چې دکندهار سپين بولـک کې دطالبانو داسلامي تحريک څرک وليدل شو،نومړې دطالبانو ددې سپيڅلې ظهـور سره کتابونه بند او دلوګر چاراسياب جهـادي ليکـو تـه ،دشـهيد قـاري محمـد اسماعيل (قلنـدر )رح ،شـهيد مولـوي عبدالاحـدرح ،مولوي غلام الرحمن حيدري صيب ،مولوي عبدالرحمن حبيب زي صيب او مولوي خليل الرحمن صيب غوندې فـداکارو مجاهـدينو او مشرانو سره مل او د مفسدو ټوپکوالو پر ضد دجهادي مبارزې مورچلوال شو .

قاري سليم شهيد دکابل لـه فتحـې وروسـته دباباجان په نـوم فرقـه کـې ديـوه مجاهـد پـه صفت او بيا ننګرهار کې دمنتظره قطعې ديوه دلګې سرپرستې ورپه غاړه وه ،دکابل دشمالي جهادي ليکو په يوه مخا مخ بريد کې دبګـرام پولو ته نږدې سخت ژوبل شـو ، خـو ترپايـه يـې لـه جهـاده لاس وانخيسـت ،ترديې چـې امريکايانوپـه (۲۰۰۱ ز)کـال اکتـوبر کـې پرګران هيواد يرغل وکړاو نومړې شهيد بيا

دټوپکوالیو عناصرو لخوا بندي او بیا خوشي شو،دځه وخت انتظار نه وروسته يې، بیا دویم ځل (۱۳۸۵هش )دمیزان دمیاشتې په( ۲۷) نیټه دپنجشنبه په ورځ له امریکایي اشغالگرو څخه هجرت وکړ،خپل ټاټوبی یې پریښوداو دامریکایانو داشغال پرخلاف یې بیا وسله وال جهاد پیل کړ،ډیر کم وخت کې ننگرهارداسلامي امارت دمشرانو لخوا ورته دبټي کوټ ولسوالۍ کې خپلواک دلگی رسمي کړای شو،او بیا یې دننگرهار دگوشتې ولسوال وټاکه ،چې دي وروستیو کې دگوشتې ولسوالۍ په اړوندو ساحو کې یې جهادي فعالیت تند کړ او جهادي سوقیات یې تشدید کړل ،دکابل دغلامې اداري واکمنو او اشغالگرو امریکایانو چې نور ددې نوموړي ژوند ځانته خطر باله او مزیدتحمل یې نشوکولای ،بالاخره یې قاري سلیم دمومندرې ولسوالۍ د(چکنور دبیلې) په سیمه کې دبي پیلوټه الوتکې لخوا په یوه مزایلي برید کې په شهادت ورساوه او دده په شهادت یې دمجاهدینو زړونه وردول او ستره ضایعه یې رامینځته کړه !

شهید قاري فضل الله سلیم له پیل نه ترپایه پورې داسلامي امارت په لیکو کې پاتي شو او ددې صف سره یې خپله وفاداري سرته ورسوله ،نوروصفونو ته یې تمایل ونکړاو په هرحالت کې یې دځان لپاره دا ښه وبلله، چې حشر یې هم داسلامي امارت دشهداوو، علماوو او طالبانو سره وشي او پدې هدف کې کامیاب هم شو .

دژوند دې وروستیو کې به چې له چا سره مخ شو، نو په متبسمه ژبه به یې همدا کلمات اوښتل راوښتل ،چې (زه شهید کیږم،دعا کوه کوه چې خدای ج مې شهید کړي او دازما یو ستر ارمان دی، چې نور شهید شم ........)چې دادی ریښتیا هم شهید شو،دنوموړي دنږدې ملگروپه حواله، چې ددې شهید قاري رح سره ددوئ دکلې (چاردهي) نه تر( چکنور) پورې په همدې ورځ بدرگه راغلي وو ،ویل یې چې دشهادت پدې ورځ د(چاردهي) دخلکو او دوستانو څخه علاوه،نوموړی دباریکاب ،میشوانو،تکیه گړۍ اونوروکلیو پر دوستانو ژر ژر وگرځید او دټولو څخه یې وداعې مخه واخسته او بل داچې دباسول بیلې د

سیند پر غاړه یې مونږ ته د وداع یا فراق په شیبو کې وویل: چې زه شهید کیږم، اودعادت پر خلاف یې راسره خوواري خدای په اماني وکړه ....،دلته ده ،چې سړي ته دالله تعالی دا قول ور په یاد شي چې :({ مِّنَ المؤمنین رِجَالٌ صَدَقُواْ مَا عَاهَدُواْ اللّه عَلَیْهِ فَمِنْهُمْ مَّن قضی۔ نَحْبَهُ وَمِنْهُمْ مَّن یَنتَظِرُ وَمَا بَدَّلُواْ تَبْدِیلاً } [ الأحزاب : ۲۳ ] .)ژباړه :دمومنانو څخه ځیني داکسان دي، چې له الله تعالی سره یې خپله وعده رښتیني کړه (په ژمنه یې وفاوکړه او دمنافقینو غوندې یې خپله وعده ماته نکړه )نو بعضې ددوئ څخه داسې څوک دي، چې خپل نذریې پوره کړ(دومره وجنګیدل چې شهیدان شول)او ځینې نور داسې دي، چې انتظار یې (دشهادت)کوي ،او دوئ خپل تعهد بدل نکړ.

شاید دادشهداوو کرامات وي، چې لا په ژوند کې ورته دخپل شهادت الهام وشي او داسې څه ووایې یا وکړي، چې هغه لږ وروسته هغه تصدیق شي ، نږدي بیلګې یې دحضرت خبیب رضی الله عنه کرامات (بي موسمه انګور وغیره دي)یا دحضرت عاصم رضی الله تعالی دجسد خارق العادة حفاظت او نورې پیښې دي ،چې دشهداوو کرامات او دمجاهدینوعظمت ترې معلومیږي .

ترکومه ځایه چې زه(لیکوال) دچاردهي د مجاهدینو او علماوو سره اړیکې لرم ،ددې سیمې خلک په تولیز ډول دینداره او دعلماوواو مجاهدینو سره بې کچه مینه لري ،قرار معلومات دې سیمې مخکې هم ډیر علماء،مجاهدین او شهیدان ټولنې ته وړاندې کړي ،لکه نږدي بیلګې یې دادي: شهیدحافظ حضرت مولینا محمد عزت الله عارف رح ،شهید حضرت علي رح ،شهید طالب امین الله رح ،شهید طالب میرزاقطبي رح ،شهید طالب شیرعلم رح ،شهید انجنیر محمدیونس رح ،شهید ملاامان الله توکلي رح ،شهید فدامحمدرح غوندې نور ډیر داسې فداکارشهیدان داسلام په خاطر دې کلې نذرانه کړي چې دخپل وخت شهکاران بلل کیدل .

رښتیا هم چې شهیدقاري فضل الله( سلیم) یو سپین زړی مسلمان ،خوشباوره مومن

،خــــدمتگار ،مخلــــص ،نهـــايي زړور، وفادار،داخلاقو او ادب يـوبې بيلگـې ځـوان ،تکړه زلمی او دبي تکلفـه ژونـد درلـودونکی و،پخپل ژوند کې يې ولس او قام تـه ډيـرې خوږې خاطرې پريښې او دتل لپاره به يـې دا کارنامې دده تر شا دده په صداقت او اخلاص شاهدي وايې ، چـې نـه يـوازې دده دکـورنۍ لپاره به وياړ وي ،بلکې دده ټولو دوستانو او همسنگرو ملگـرو تـه بـه دافتخـار ځـای وي ،دنومورې نه وروسته دده شپږزامن (مصعب ،عاصم ،جابر،حذيفه ،محمـد او طلحـه )پـاتې دي، چې له نيکه مرغه يې مشر- زوی دقـران کريم حافظ او اوس مدرسه کې په دينـي زده کړو بوخت دی .

دنومورې شهيد مشر- ورو مولـوي فـاتح الله فاتح دده پـه بـاره کـې داسـې وايـې :دقـاري فضل الله شهادت دده دژونـد يـو ارمـان واو هغه پدې پاک هدف کې کامياب شـو، مـونږ تــه دافتخـــار ځـــای دی ،چـــې دامريکـــايي اشغالگروسره تر پايه وجنگيد،ترڅو شهيد شو او خپــل ژونـــدیې دالله تعـــالی پـــه لاره کـــې مصرف کړ،نومـورې وويـل :چـې مـونږ دا شهيد قاري ددين خدمت ته وقـف کـړی و او ددين دگټولو اوساتلو پـه لاره پداسـې وخـت کې يې خپل روح دارواحو مالک ته وسـپاره چــې د (ذوالهجرتين)افتخــار يـــې هـــم دلارې مشال شو !

نومورې چې د مومندرې ولسـوالۍ د(بيلـې) پــر لاره ديـــوه بـــل ملگـــرې سره روان و،پـــه (۱۳۹۴هش) کال دقوس دمياشتې پــه دويمــه نيټــه ددوشـــنبه پــه ورځ دماښــام دلمانځـه نــه وروسته دامريکايانو بي پيلوټه الـوتکې پـه يو ه ظالمانه بريد کې شهيد او داجل داعي تـه يې لبيک ووايه

(اناالله وانا اليه راجعون )

روح يې ښاد او لار يې له خوښيووډکه اوسه

# د دعوت ارشاد جلب او جذب کميسون

## دنومبر دمياشتې راپور

دروان (۲۰۱۵م )کال دنومبر په مياشت کي هم دتېرومياشتوپه شان داسلامي امارت ددعوت ،ارشاد،جلب اوجذب کميسيون په هڅواودځـايي مجاهدينوپـه ملاتـړ دافغانستان په مختلفوولاياتوکي ۷۵۷تنه چي دکابل اداري اړوند بيلابيلو ارگانونوکي په کاربوخت وو دحقايقوپه درک کولو ددغه فاسداوگوډاگي رژيم څخه راووتل اواسلامي امارت دمجاهدينوسره يوځای شول .

گرانو لوستونکو داهم دتسليم شووکسانو مياشتني ارقام:

ننگرهار: ۴تنه عسکر

کندوز: ۲۵تنه عسکر

جوزجان: ۴۴تنه عسکر

پکتيا: ۲ تنه عسکر

کونړ: ۳ تن عسکر

نوستان : ۳۳۷تنه عسکر

سرپل: ۵۴تنه عسکر

ارزگان : ۳۲تنه عسکر

غزني : ۸ تنه عسکر

کندهار: ۳تنه عسکر

هلمند: ۸۴تنه عسکر

فارياب : ۱۵۲تنه عسکر

دايکنډي : ٦ تنه عسکر

زابل: ۱تن عسکر

اوپه نورستان ولايت کي ۳۳۷تنه بااحساسه عسکراومنسوبين داسلامي امارت داتلومجاهدينوسره يوځای شول بادرکه هيوادوالو مختلفه النوع لويې اووړې وسلې ،مخابرې ،وسايط اويوزيات شمېرمهمات مجاهدينوته وسپارل .

دکابل دمنفوررژيم څخه راجلاشوو اواسلامي امارت له مجاهدينوسره يوځای

شوو هیوادوالو وعده وکړه چي نوربه دخپل ددین او وطن دخارجي اوداخلي مزدورانوسره هیڅ رازتعلق نه ساتي،دخپل مظلوم ولس اومجاهدینو وروڼوسره به همکاري کوي ،ترڅولوی خدای جل جلاله ژرترژره زموږله ویاړلې خاوري څخه دکفر،فسق ،،اشغال ،فحشاء اوگمراهیو کرغیړن تغرټول کړي اودمسلمانانودخوښي یوسوچه اسلامي واکمني رامنځته کړي چي دټول افغانان پرې راټول شي.

داسلامي امارت ددعوت ،ارشاد،جلب اوجذب کمیسیون مشرتابه دوی ته هرکلی وایه ،انعامونه اوجایزې یې ورکړې اوددوی همدانیک اقدام یې ډیروستایه چي دیرغلگرواولاسپوځي رژیم څخه یې راووتل اودافغانستان اسلامي امارت دمجاهدینو سره یې خپل پیوستون اعلان کړ.

دافغانستان اسلامي امارت دگران هیوادڅخه دوحشي یرغلگرو دشړلو او داسلامي اوملي نظام درامنځته کولوپه موخه دروان سپېڅلي مقاومت په لړکي دنظامي فعالیت ترڅنگ سیاسي ، فرهنگي ،تعلیمي اودعوتي هڅي هم گړندۍ کړي دي داسلامي امارت غښتلي مجاهدین دپراخو پوځي لاسته راوړنوڅخه علاوه هره میاشت دهیوادپه بیلابیلو ولایتونواو ولسوالیوکي ددعوت اوارشاد کمیسیون په هڅو لکه پورته چي ذکرشول دکابل اداري څخه په سلهاووتنه کارمندان راوزي اوداسلامي امارت غیږي ته پنا راوړي.

دعوت اوارشادکمیسیون



# جنګي جنايتونه




سيد سعيد

د روان( ۲۰۱۵) کال د نومبر د مياشتي په ۳مه نيټه د ميدان وردګ ولايت د سيداباد ولسوالۍ دشيخ اباد په وخجم کلي کي د داخلي عسکرود توپونو په ډزو کي يو ځلور کلن ماشوم (منصور دحيات الله زوی) شهيد شوی او يو بل کوچنی ژوبل شوی دی.

د نومبر په ٦مه د شپې مهال د خوست ولايت د مرکز مربوط په ډيري سيمه کي داخلي عسکرو د چاپې په وخت کي د يوه کور دوه غړي شهيدان کړي او درې تنه يې له ځان سره دبنديانو په توګه وړي دي.

د نومبر په ۸ مه د کندوز ولايت د امام صاحب ولسوالۍ په زرکمر او شهروان سيمو کي د کورنيو عسکرود توپونو په ډزوکي په لسهاوو ملکي وګړي شهيدان شوي او ټپيان شوي او کورونه يې وران شوي دي.همدا راز ددغه ولايت په دښت ارچي ولسوالۍ کي هم د داخلي عسکرو د توپچي په ډزو کي ولسي خلګو ته دسر او مال درانه زيانونه اوښتي دي.

د نومبر په ۱۰مه دخوست ولايت دعليشيرو ولسوالۍ د درويزګۍ په سيمه کي د کمپاين عسکرو دوه تنه ولسي هيوادوال شهيدان کړي دي.

د نومبر په ۱۱مه زابل کي د داعش له لوري د وژل شوو کسانو د وژني په اړه خلګودارګ مختـه لاريون وکړ،دوی په دغه پيښه کي دحکومت ناغيرې وغندله او په راتلونکي کي يې د امنيت ډاډ غوښت، چي ناڅاپه داخلي عسکرو پر مظاهره کونکو ډزي وکړې او اووه تنه لاريون کونکي يې ژوبل کړل.

د نومبر په ۱۲مه دغزني ولايت د شلګرو لسوالۍ په رحيم خيلو کلي کي اربکيانو د يو ولسي

وګړي( خالد اکا) پر کور چاپه وهلې اونومړی يې د خپلو او لادونو په مخ کې شهید کړی دی..

د نومبر په ۱۳مه یرغلګرو ځواکونو د کورنیو عسکرو په ملتیا د شپنیو چاپو په لړ کې دپکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ په چهار کلا سیمه کې چاپه وهلې، ولسي خلګ یې شکنجه کړي او مالونه یې ور لوټ کړي دي.

د نومبر په ۱۴مه د خوست ولایت د سپیري ولسوالۍ په مربوطاتو کې د طالبانو او ګډو ځواکونو ترمنځ د نښتي په ترخ کې د یرغلګرو چورلکو پر یو کور بمبار کړی، دوه تنه ملکي وګړ یې شهیدان کړي او یو تن یې ژوبل کړی دی.

دنومبر په ۱۵مه دفراه ولایت د پشترود ولسوالۍ دبلندي په سیمه کې د داخلي عسکرو دهاوان په ډزوکي د یوې میرمني په ګډون څلور تنه ټپیان شوي دي.

د نومبر په ۱۵مه د لوګر ولایت د محمداغه ولسوالۍ پر زرغون ښار کلي باندي یرغلګرو او داخلي عسکرو دچاپې پرمهال درې تنه ولسي-وګړي بندیان کړي دي.

د نومبر په ۱۷مه یرغلګرو ځواکونو د شپنیو چاپو په لړ کې دهلمند ولایت د نادعلي ولسوالۍ په شنه جامعه سیمه کې چاپه وهلې،درې تنه ولسي وګړي یې د بندیانو په توګه له ځان سره وړي دي.

د نومبر په ۲۱مه د نورستان ولایت مرکز پارون اړوند د چتراس په سیمه کې داخلي عسکرو چاپه وهلې، خلګ یې وهلي، د کورونو دتلاشۍ په مهال یې د خلګو مالونه له ځان سره وړي او دولس تنه ملکي هیواوال یې بندیان کړي دي.

د نومبر په ۲۲ مه د تخار ولایت د ینګي قلعه ولسوالۍ په کهنه قریه کې اربکیان د غلا لپاره یو کورته وراوښتي، کله چي د کور غړي په غلو خبر شوي، غلو ډزي کړي چي له امله یې دیاد شوي کو ردر ې تنه غړي شهیدان شوي او اربکیانو ۶۰۰۰۰زره افغانۍ له ځان سره وړي دي.

د نومبر په ۲۲مه د کابل ولایت دموسهي ولسوالۍ د میاخیلو په کلي کې اربکیانو یو ځوان (امیرګل ) له وهلو وروسته شهید کړی دی.

دنومبر په ۲۳مه اشغالګرو دشپنیو چاپو په لړ کې د ننګرهار ولایت دغني خیلو ولسوالۍ

دسیاچوب په سیمه کې چاپه وهلې، د خلگو کورنه یې تلاشي کړي او وروسته یې څلور تنه ولسي هیوادوال بندیان کړي دي.

دنومبر په ۲۳مه یرغلگرو ځواکونو د کورنیو عسکرو په ملتیادهلمند ولایت د گرشک ولسوالۍ دنهرسراج د حاجي دین محمد پرکلي چاپه وهلې،څلور تنه ملکي وگړي یې شهیدان کړي،دوې یې ټپیان کړي او یو تن یې بندي کړی دی.

د نومبر په ۲۴مه د غور ولایت مرکز اړوند الله یار سیمه کې د طالبانو او داخلي عسکرو ترمنځ د نښتي په ترځ کې د عسکرو په ډزو کې دوه تنه ولسي وگړ ي شهیدان شوي دي.

د نومبر په ۲۶مه د کونړ ولایت د ناړۍ ولسوالۍ په باټاش کلي کې اربکیانو یو سپین ږیری (محمد امین) او زوی (جمع الدین) یې چي له یو ې جنازې څخه را روان وو شهیدان کړي دي.

د نومبر په ۲۷ مه د کونړ ولایت د مانوگي ولسوالۍ په مربوطاتوکي داخلي عسکرو دوه تنه ملکي وگړي ژوبل کړي دي.

د نومبر په ۲۸مه د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په مربوطاتو کې کورنیو عسکرودوه تنه ولسي وگړي بندیان کړي دي.

د نومبر په ۲۹مه د میدان وردگ ولایت د نرخ ولسوالۍ ته نژدې په الیکه کلي کې د کورنیو عسکرو په ډزوکي یوه میرمن شهیده شوې ده.

د نومبر په ۳۰مه د ارزگان ولایت د خاص ارزگان ولسوالۍ په نیکروز سیمه کې اربکیانو د یو ښوونکي په گډون درې تنه ولسي- وگړي شهیدان کړي،د سیمه ییزو خلگو په وینا اربکیانود ځایې ښوونځي ښوونکی( توکلي) د نوموړی زوی او د ظاهر اکا په نوم یوکلیوال په شمول درې واړه شهید ان کړي دي.

مأخذونه :[بي بي سي راډیو،ازادي = ،افغان اسلامي اژانس ،پژواک ،خبریال ویبپاڼه، لراوبر= ،نن ټکی اسیا=اوبینوا=].

# د ناټو د وروستۍ پریکړې په اړه د اسلامي امارت د ویاند غبرګون

د ناټو غړو هیوادونو یوځل بیا د افغانستان په اړه خپل شوم نیت څرګند کړ او تصمیم یې ونیو چې خپل اشغالګر ځواکونه به د۲۰۱٦ کال تر پایه په افغانستان کې ساتي، د کابل تپل شوي ادارې ته به تر څو کلونو مالي کومک برابروي او د افغانانو د تیر ایستلو په موخه به ځینې په اصطلاح ملکي کارونه پرمخ وړي.

اسلامي امارت د ناټو یاد تصامیم په کلکه غندي، په افغانستان کې د اشغال دوام او دجګړو اور تازه ساتل نه تنها داچې نور هم افغانان له مشکلاتو سره مخ کوي، بلکې سیمه لابې ثباته کوي ، فرصتونه ضایع کوي اوخپله دناټو حیثیت نور هم ورسره رالویږي .

څرنګه چې د ناټو اشغالګرو هیوادونو په لسګونه زره عسکرو او میلیاردونو پیسو ونشو کړای دافغانانو اراده او هوډ بدل کړي؛ نو څو زره په بیسونو کې حصار عسکر هم نشی کولای، د ناټو لپاره دهغوی اشغالګرانه اهداف تر لاسه کړای شي.

تاریخ ثابته کړې چې افغان میړنی اولس دویرولو او ډار اولس نه دی، بلکې د وروستي اشغالګر عسکر تر شتون پورې به مقدس جهاد ته دوام ورکوي، له خپل منل شوي او مشروع حق څخه په استفاده سره به داسلامي امارت په قیادت کې دخپل هیواد د آزادۍ لپاره ټول امکانات په کار اچوي.

ذبیح الله مجاهد د اسلامي امارت ویندوی

د مورچل ورځې

## سرګردان دي

مفتون غرق پرق

څوک په دښتو ګرنګو کې سرګردان شول
څوک ښارونو او دېرو کې سرګردان شول

څوک په کلو کې مزي کوي ګرځيږي
څوک د هجر په اورو کې سرګردان شول

څوک په ژوند کې دخوندونو پسې ګرځي
څوک چې مړه شول مقبرو کې سرګردان شول

څوک ارامه باندې ژوند تيرول غواړي
څوک دهجر زولنو کې سرګردان شول

څوک له لوږې تندې مړه شول په صحرا کې
څوک ښارونو او کورو کې سرګردان شول

څوک په نيمه شپه خوبونو ليوني کړل
څوک په ويښه سره تلو کې سرګردان شول

څوک شعرونه د عابد مفتون په شان کړي
څوک په سخت سختو شعرو کې سرګردان شول




عبد الباقي مهاجر

دارمان غوټۍ مې ګل شوې انقلابه
فتحې فتحې پل په پل شوې انقلابه

ها په ډېر غرور چې راغلې سرې لښکرې
ښکارې مرګ باندې معطل شوې انقلابه

زور يې ختم شو دتيښتې لار يې ورکه
ځارشم زړه هم مې ګوګل شوې انقلابه

هجرانونه دې دوصل په غيږ ورکړو
لکه ستورى ځل او بل شوې انقلابه

دنړۍ له ستر ښامار دې سوبه راوړه
ځکه ته هم يو اتل شو ې انقلابه

دزړه باغ مې راته وسپړل ګلونه
چې حاکم مو په درشل شوې انقلابه

ښه شو ښه شو مهاجر له خدايه غوښتې
ښه شو زړه ته يې تسل شوې انقلابه

# ثاڅکي

ذاکر مهاجر

زمونږ له اوښکو به اوبه شي ارمانونه
له ګریوانه موستانه شي ارمانونه

زمونږ پر بخت پروت دی د کومي بلا سیوری
زمونږ خپل وي بیګانه شي ارمانونه

دغمجن زړګي په للمو تلوسو کې
سره لمبه شي لولپه شي ارمانونه

دسرو وینو ګل غوټۍ شي پاڼي پاڼي
ګل شوي نه وي مړه شي ارمانونه

داجل په کروندو کي دي کرلي
خدایه کله به راشنه شي ارمانونه

.مونږ تنها کې پښې شپې وړو چې سحرګاه شي
.درقیب غیږ کې ویده شي ارمانونه

.چې دیار درحم ثاڅکی پري توی نشي
خدای خبرچې زرغونه شي ارمانونه

## غازي ملالې وروه

(همت)

لکه شمعه له سره اوره درته خاندم
چي راځې له هره لوره درته خاندم

هسي مه وایه چي ویلې شوه مړه کیږي
تازه کیږمه لا نوره درته خاندم

دتیارو په زړه کي تل دزړه له تله
دغازي ملالې وروره درته خاندم

ته چي ځې دقربانۍ میدان ته وزې
مجاهده له خپل کوره درته خاندم

چي قربان شي په اسلام داود (همته)
هغه ورځ به ښه په زوره درته خاندم

# مـرچـل

(عرفان الله عرفاني)

مرچـــــل تـــرې جـــوړوم غټـــې ډبـــرې مـــې پکـــار دي
راغلــــــی انقـــــلاب دی تـــورې زغـــرې مـــې پکـــار دي

اعـــلان کـــړم خپـــل ملـــت تـــه دغـــزامنبـــر تـــه خېـــږم
جهـــاد تـــه ځـــم جنگـــي مســـتې لښـــکرې مـــې پکـــار دي

دا ســـترې قـــافلـــې پـــرې تـــر منزلـــه رســـومه
چـــارگـــام ســـره ســـپین آســـونه اوکچـــرې مـــې پکـــار دي

چـــې مخکـــې مـــونیکـــونـــووې پـــه تـــوره کـــولـــولـــې
منـــار تـــرې جـــوړوم هغـــه ککـــرې مـــې پکـــار دي

لیلـــی دآزادۍ تـــه رنگـــین هـــار تـــرې جوړومـــه
پـــه تـــار کـــې یـــې پېیمـــه ملغلـــرې مـــې پکـــار دي

چـــې کانـــدي پـــر وازونـــه دوطـــن پـــه شـــنو درو کـــې
دزانـــو کتارونـــه اوکـــوترې مـــې پکـــار دي

چـــې ویښ مـــې کـــړي ویـــده ضـــمیرژوندی مـــې مړاحســـاس کـــړي
حماســـې ترانـــې مســـتې ســـندرې مـــې پکـــار دي

دا پـــورې جـــگ جـــگ غرونـــه مـــې لـــه زړه نـــه ډېـــر خـــوښـــېږي
ورځمـــه عرفـــاني تـــورې گـــورگـــورې مـــې پکـــار دي

# کابل

**سروبي کې د مزدورو عسکرو په کاروان بریدونه ترسره شول**

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند د تور ناو او زیړي منځې په سیموکې د مزدورو عسکرو په کاروان بریدونه ترسره شول چې په مهال یې دښمن ته واوښت. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**سروبي کې په کاروان د برید له امله ۲ پولیس قتل، ۲ نور ژوبل شول**

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند دکړکین په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په اکمالاتي کاروان تعرضي برید ترسره شو، په برید کې ۱ رینجر، ۲ عرادې اکمالاتي موټر ویجاړ شول، ۲ تنه پولیس قتل او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**موسهي کې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه**

دکابل ولایت د موسهي ولسوالۍ اړوند عبدالرؤف کلا په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پلیوعسکرو د ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې دښمن ته درنه مرګ ژوبل واوښته خو په اړه یې کره معلومات ندي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**سروبي کې رینجرویجاړ ۳ عسکر قتل، ۲ نور ژوبل شول**

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند ماهیپر ته څېرمه د شیر خاني کڅ په سیمه کې د ګوډاګیو پولیسو په رینجر برید ترسره شو، په برید کې ۱ رینجر ویجاړ ۳ پولیس قتل شول او ۲ نور ټپیان دي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**بګرامیو کې امریکایي کشفي الوتکه رانسکوره شوه**

دکابل د بګرامیو ولسوالۍ اړوند د سهاکو په غرنۍ سیمه کې د امریکایي اشغالګرو یوه کشفي الوتکه رانسکوره او له منځه ولاړه. ۲۰۱۵/۱۱/۴

**چهاراسیاب کې د مزدورې اردو ۱ تن افسر ووژل شو**

دکابل ولایت د چهار اسیاب ولسوالۍ اړوند دقلعه پتو په سیمه کې د مزدورې اردو په ۱ تن افسر برید ترسره شو چې په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**سروبي کې په لوی مرکز بریدونه وشول اوګڼ شمیر عسکر مړه اوژوبل شول**

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند د جګدلک په سیمه کې د مزدورو عسکرو په لوی مرکز توغندویز بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې د مرکز لویه برخه تخریب شوه، یو موټر ویجاړ شو او دښمن ته درانه ځاني تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**کابل ښار کې د چاودنې له امله د جاسوسي اداري مهم کارمند ووژل شو**

دکابل ښار ۸ حوزه د بني حصار په سیمه کې د جاسوسي ادارې د کارمندانو په موټر د مقناطیسي ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر ویجاړ شو او ۱ مهم افسر له منځه ولاړ. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**سروبي کې ۱ رینجرویجاړ شو او ۳ تنه عسکر له مینځه لاړل**

د کابل ولایت د د سروبي ولسوالۍ اړوند د ډبیلي پول له سیمي نه بیا تر سورۍ تیږي پوري د مزدور دښمن په پوستو او کاروانونو ۳ ځله بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې د مزدورو عسکرو ۱ رینجر ویجاړ ۳ تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**پغمان کې مهم قومندان په برید کې ووژل شو**

د کابل ولایت د پغمان ولسوالۍ اړوند د ارغندۍ په سیمه کې په ظالم قومندان (عقیق) برید ترسره شو، په برید کې نوموړي قومندان ځای په ځای ووژل شو او دخپلو شومو اعمالو په سزا ورسید. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**سروبي کې رینجرویجاړ په پوسته برید ترسره شو**

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ د اوزبین سیمې اړوند د وچ کاڼي په پوسته او د مزدورو پولیسو په رینجر بریدونه ترسره شول، په برید کې رینجر تخریب شو او په پوسته کې میشتو عسکرو ته هم مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**سروبي کې ۳ عسکرقتل، ۲ نور ژوبل شول**

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند دکابل جلال اباد په لویه لار د کړکین په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په اکمالاتي کاروانونو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې ۱ رینجر، ۲ عرادې اکمالاتي موټر ویجاړ شول، ۳ تنه اجیر عسکر قتل او ۲ نور ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**پغمان کې د چاودنې له امله رینجر تخریب شو او دښمن ته مرګ ژوبله رسیدلې**

د کابل ولایت د پغمان ولسوالۍ اړوند دلاندې ارغندۍ په سیمه کې د مزدورو پولیسو په رینجر چاودنه ترسره شو، په چاودنه کې رینجر تخریب شو او دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**کابل پلچرخي ته نږدې دګوډاګي دښمن په فرقه توغندویي برید ترسره شو**

د کابل ښار اړوند د پلچرخي په سیمه کې د مزدور دښمن په فرقه توغندویز برید ترسره شو، په برید کې توغندي په هدف ولګیدل او له امله یې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**پغمان کې چاودنې ۴ عسکرو ته مرګ ژوبله واړوله**

د کابل ولایت د پغمان ولسوالۍ اړوند د عیسی خېلو کلي ته څېرمه د کوت په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر تخریب شو او ۴ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**خیرخانه کې دګوډاګي اداري مهم افسر له خپلو ساتونکو سره ووژل شو**

د کابل ښار اړوند د خیرخانې په سیمه کې د مزدورې ادارې د یوه لوړ

رتبه افسر په موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر تخریب او افسر له خپلو څو تنو ساتونکو سره ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**مربچه کوټ کې رینجر تخریب ۴ تنه پولیسوته مرګ ژوبله واوښته**

دکابل ولایت د میربچه کوټ ولسوالۍ اړوند د شکردرې سرک ته څېرمه د پولیسو په رینجر د ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر تخریب شواو ۴ تنو پولیسو ته په کې مرګ ژوبله واوښته . ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**سروبي کې رینجرویجاړ، په کې سپاره ۳ پولیس قتل، ۳ نورژوبل شول**

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند د اوزبین په چهل ګزي کې د مزدورو پولیسو په رینجر برید وشو، په برید کې رینجر ویجاړ شو، ۳ تنه پولیس قتل شول او ۳ نور ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**کابل ښار ۸ حوزه کې رینجرویجاړ، ۶ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د کابل ښار ۸ حوزې ته څېرمه د کلاچې په سیمه کې د مزدورو پولیسو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر ویجاړ، د قومندان په ګډون ۶ پولیسوته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**موسهي کې شریرو اربکیانو ۱ تن عام وګړی شهید کړ**

دکابل ولایت د موسهي ولسوالۍ اړوند دمیاخېلو په کلي کې شریرو اربکیانو په یوه کور چاپه ووهله او د امیر ګل په نامه یو ځوان یې له سختو وهلو ټکولو وروسته دخپل کور مخ ته په ظالمانه ډول شهید کړ. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**شکردره کې موټرویجاړ، په کې سپاره ۴ تنه افسران ووژل شول**

دکابل ولایت د شکردرې ولسوالۍ اړوند دکابل پروان په لویه لار د حسین کوټ په سیمه کې دګوډاګي اداري دلوړرتبه افسرانو په موټر چاودنه وشوه، چاودني موټر ویجاړ او په کې سپاره ۴ تنه افسران ووژل . ۲۰۱۵/۱۱/۲۴

**خاکجبار په ولسوالۍ توغندویي برید ترسره شو**

دکابل ولایت دخاکجبار ولسوالۍ ودانۍ تر توغندیز برید لاندي راغله، په برید کې توغندي په هدف ولګېدل او له امله یې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۲۵

**کابل مکرویانو کې د کندز مرستیال والي په موټر چاودنه وشوه**

دکابل ښار اړوند د زړو مکرویانو په سیمه کې د کندز ولایت د مرستیال والي په موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټرویجاړ او ګڼ شمیر پولیس مړه او ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳۰

**سروبي کې ۱ ټانک، ۱ رینجرویجاړ، ۴ عسکرووژل شول، ۲ نورژوبل دي**

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند د کابل جلال اباد لویه لار د سورې تیږې په سیمه کې د مزدور دښمن په عسکرو برید وشو، په برید کې ۱ ټانګ، ۱ رینجر ویجاړ شول، ۴ تنه عسکر مړه او ۲ نور ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳۰

## غزنی

**قره باغ کې ۱ عسکر په برید کې ووژل شو**

دغزني ولایت دقره باغ ولسوالۍ اړوند د بلوچ خېلو کلي ۱ تن عسکر (خالقداد) برید وشو چې ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱

**شلګرکې ۲ عسکرقتل، ۳ نورژوبل شول**

دغزني ولایت د شلګرولسوالۍ اړوند په کوته سنګي سیمه کې د مزدورو عسکرو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۲ عسکر قتل او ۳ نور سخت ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**قره باغ کې ټانګ ویجاړ ۴ عسکر ووژل شول**

دغزني ولایت د قره باغ ولسوالۍ اړوند د باران کلا په سیمه کې د مزدورو عسکرو په ټانک د ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې ټانګ په بشپړه توګه ویجاړ شواو ۴ عسکر په کې ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**شلګرکې ۴ عسکر قتل، ۶ نورژوبل شول**

دغزني ولایت د شلګرولسوالۍ اړوند په ناني سیمه کې دمزدوروعسکرو په کاروان برید ترسره شو، دبرید په جریان کې ۱ رینجر، ۲ عرادې لوی موټر ویجاړ شول، ۴ تنه عسکر قتل شول او ۶ تنه نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**شلګرکې ۱ اربکي له مخالفت نه لاس واخیست**

دغزني ولایت د شلګر ولسوالۍ اړوند د ناکام کلي ۱ تن اربکي (ادم خان) دحقائقو په درک کولو سره له مزدورې اداري نه را بیل او له مخالفت نه لاس په سر شو. ۲۰۱۵/۱۱/۴

**شلګرکې رینجراواکمالاتي موټرویجاړ، ۳ عسکرقتل، ۴ نورژوبل شول**

دغزني ولایت د شلګر ولسوالۍ اړوند دناني په سیمه کې د مزدورو عسکرو په کاروان برید ترسره شو، په برید کې ۱ رینجر، ۱ اکمالاتي موټر، ۳ تنه مزدور عسکر قتل او ۴ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۶

**غزني مرکزته نږدې د جاسوسي اداري ۳ عسکرووژل شول**

دغزني ولایت د مرکز ته څېرمه د جاسوسي اداري په پلیوعسکرو چاودنه وشوه چې په مهال یې ۳ تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۶

**ده یک کې د شریرو اربکیانو په پوسته برید ترسره شو**

دغزني ولایت دده یک ولسوالۍ اړوند په لغباد سیمه کې دشریرو اربکیانو په پوسته دسپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته خو په اړه یې معلومات نه دي تر لاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۶

**قره باغ کې د چاودني له امله ۲ عسکرووژل شول**

د غزني ولایت د قره باغ ولسوالي اړوند دمنو کلا په سیمه کې د مزدور دښمن په پلیوعسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه مزدور عسکر ووژل شول.۲۰۱۵/۱۱/۸.

**شلګرکې ۳ پولیس قتل،ګڼ شمیروسلي او مهمات په غنیمت ونیول شول**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ اړوند د صاحب خان په سیمه کې د مزدورو پولیسو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۳ تنه پولیس ووژل شول، ۳ میله کلاشنکوفونه، ۳ چاتنې، ۱ کړۍ لاسي بم او ۱ دانه زغره په غنیمت ونیول شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۰

**مقرکې په مزدورو عسکرو برید ترسره شو**

د غزني ولایت د مقر ولسوالۍ اړوند د کمپنۍ په سیمه کې د مزدورې اردو په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې د ښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو کره شمیره یې نه دي ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۱۰

**اب بندکې ۱ اربکی له مخالفت نه لاس په سر شو**

د غزني ولایت د اب بند ولسوالۍ اړوند د پیارو کلي اوسیدونکی ۱ تن اربکي (غلام ولي) د حقائقو په درک کولو سره د مزدورې اداري له لیکو نه رابیل او له مخالفت نه لاس په سر شو.۲۰۱۵/۱۱/۱۳

**شلګرکې اربکیانو دشپې د چاپې په مهال پلار د اولادونو په وړاندې شهید کړ**

د غزني ولایت د شلګرولسوالۍ اړوند د رحیم خېلو په کلي کې شریرو اربکیانو د خالد اکا په کور چاپه ووهله او نوموړی یې د خپلو اولا دونو په مخ کې په بې رحمانه ډول په شهادت ورساوه. ۲۰۱۵/۱۱۱۲

**ګیلان کې تکتیکي برید د مهم اربکي قومندان ژوند واخیست**

د غزني ولایت د ګیلان ولسوالۍ اړوند ازاد د پوستې په اربکي قومندان (عزت ) تکتیکي برید ترسره شو او ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**شلګرکې په شریرو اربکیانو برید ترسره شو**

د غزني ولایت د شلګرولسوالۍ اړوند د چلتن په سیمه کې په شریرو اربکیانو برید ترسره شو، په برید کې د ښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو کره شمیر یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**شلګرکې د ۳ اربکیان ووژل شول ، یوشمیر ژوبل دي**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ اړوند د باګو په سیمه کې په مزدورو عسکرو او اربکیانو برید ترسره شو، په برید کې ۳ تنه شریر اربکیان ووژل شول او یوشمیر نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**اب بند کې ۱ اربکی له مخالفت نه لاس په سر شو**

د غزني ولایت د آب بندولسوالۍ اړوند د اتک کلي اوسیدونکي ۱ تن اربکي ( محمد نبي) د حقائقو په درک کولو له مخالفت نه لاس په سر شو، نوموړي له ځان سره ۱ میل کلاشنکوف له چاتنې سره مجاهدینو ته تسلیم کړ. ۲۰۱۵/۱۱/۱٦

**شلګرکې په پوسته دبرید له امله مهم قومندان او۱ تن پولیس ووژل شول**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ اړوند د صاحب خان کلا په سیمه کې د مزدورو پولیسو په پوسته برید تر سره شو، په برید کې د پوستې قومندان او ۱ تن پولیس ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۷

**شلګرکې په ګوډاګیو عسکرو د ماین چاودنه ترسره شوه**

د غزني ولایت د شلګرولسوالۍ اړوند د چهاردیوال په سیمه کې د مزدور دښمن په عسکرو چاودنه وشوه، په چاودنه کې مزدورو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**قره باغ کې رینجرویجاړ، په سپاره ۳ پولیس قتل، ۴ نورژوبل شول**

د غزني ولایت د قره باغ ولسوالۍ اړوند د مجه په سیمه کې د مزدور پولیسو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر ویجاړ، ۳ تنه ګوډاګي پولیس ووژل شول او ۴ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**شلګرکې تکتیکي برید مهم اربکی وواژه**

د غزني ولایت د شلګرولسوالۍ اړوند د ناکام په کلي کې په شریرو اربکیانو برید وشو چې په مهال یې ۱ تن اربکی (عبدالوهاب) ووژل شو ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**ګیروولسوالۍ په ودانۍ د برید له امله ۱ پولیس قتل، ۱ بل ژوبل شو**

د غزني ولایت د ګیرو ولسوالۍ په ودانۍ د سپکو او درنو وسلو برید وشو چې په مهال یې ۱ تن پولیس ووژل شو او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۱

**غزني مرکزته څېرمه د چاودنې له امله ۲ عسکرووژل شول**

د غزني ولایت مرکز ته نژدې د سپنده په سیمه کې دګوډاګي دښمن په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه عسکرځای په ځای ووژل شول.۲۰۱۵/۱۱/۲۱

**شلګرکې د ناڅاپي برید له امله ۲ تنه عسکرووژل شول**

د غزني ولایت د شلګرولسوالۍ اړوند د عاشق والو په سیمه کې دګوډاګي دښمن په عسکرو برید وشو او په مهال یې ۲ تنه مزدور عسکرووژل شول.۲۰۱۵/۱۱/۲۱

**واغزکې ۱ تن عسکر مجاهدینو ته تسلیم شو**

د غزني ولایت د واغز ولسوالۍ اړوند د عثمانزو کلي ۱ تن اوسیدونکی عسکر(عزیزخان) د حقائقو په درک کولو سره له ګوډاګي اداري بیل او مجاهدینو ته تسلیم شو.۲۰۱۵/۱۱/۲۱

**خواجه عمري کې د مستوفیت مرستیال ووژل شو**

د غزني ولایت د خواجه عمري ولسوالۍ اړوند د نوي کلا په سیمه کې دیاد ولایت د مستوفیت په مرستیال (سیدهدایت) برید وشو چې په مهال

يې نوموړي ځای په ځای ووژل شو.۲۰۱۵/۱۱/۲۴

**اب بند کې ۱ اربکی له مخالفت نه لاس په سرشو**

د غزني ولایت د آب بند ولسوالۍ اړوند د تجني کلي اوسیدونکي ۱ تن اربکي (محمدنظر) د حقائقو په درک کولو سره له مخالفت نه لاس واخیست.۲۰۱۵/۱۱/۲۴

**غزني مرکزته نژدې رینجر تخریب، ۳ تنه پولیس ژوبل شول**

د غزني ولایت د مرکز اړوند د مات پول په سیمه کې د مزدورو پولیسو په رینجر ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر تخریب، ۳ تنه پولیس ژوبل شول.۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**مقر کې د چاودنې له امله ۳ عسکر قتل، ۲ نور ژوبل شول**

د غزني ولایت د مقر ولسوالۍ اړوند د منجر خېلو په سیمه کې د مزدوردښمن په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۳ تنه عسکر قتل او ۲ نور ژوبل شول.۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**شلګر کې د شریرو اربکیانو په پوسته برید وشو**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ اړوند د حبیب ګوړلو سیمه کې د شریرو اربکیانو په پوسته برید ترسره شو، د برید په جریان کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې.۲۰۱۵/۱۱/۲۹

# میدان وردګ

**چک کې ۲ عسکر قتل او په ۳ پوستو بریدونه ترسره شول**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د نورخېلو، دورانخېلو او دمنه سر په پوستو مسلسل توغندویي بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته خو په اړه یې کره معلومات ندي ترلاسه شوي، دغه راز دیادې ولسوالۍ اړوند د باغ بند په کلي کې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱

**سیدابادکې ۱ مزدور عسکر قتل، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند ډاګبغري او شاترو په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پلیو عسکرو برید ترسره شو چې په مهال یې ۱ مزدور عسکر قتل او ۱ بل ژوبل شو.۲۰۱۵/۱۱/۲

**میدان وردګ چک کې په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د نورخېلو او دورانخېلو په سیمه کې د مزدورو عسکرو په پوستو بریدونه وشول، د بریدونو په جریان کې دښمن ته درنه مرګ ژوبل واوښته خو په اړه یې کره معلومات ندي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**سیدابادکې په مزدورو عسکرو برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د ملي خېلو په سیمه کې د مزدور دښمن په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتي مرګ ژوبلې په اړه کره معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**چک کې په پوستو بریدونه ترسره شول**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د نورخېلو، دورانخېلو او دمنه سر په سیمو کې د مزدور دښمن په پوستو بریدونه وشول، په بریدونو کې دښمن ته درانه تلفات واوښتل خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**سیدابادکې په پوسته د برید له امله ۲ عسکر ووژل شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د هفت اسیا په سیمه کې د مزدورو عسکرو په پوسته برید ترسره شو چې په مهال یې د ښمن ۲ تنه عسکر ووژل شول.۲۰۱۵/۱۱/۳

**جغتو کې رینجر ویجاړ عسکر مړه او ژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت د جغتو ولسوالۍ اړوند د مردلي په سیمه کې د مزدور دښمن په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۱ رینجر تخریب شو او د نورو تلفاتو په هکله معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**سیدابادکې په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند دشیخ اباد په سیمه کې دکلاګۍ او هاشم خېلو په پوستو برید ترسره شو، په برید کې د ښمن ته درونډ زیان واوښت خو په اړه یې کره معلومات ندي رارسیدلي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**سیدابادکې د بې رحمه دښمن په ړندو ډزو ۱ ماشوم شهید، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند دشیخ اباد سیمه کې د وخجم په کلي ګوډاګیو عسکرو د توپونو ډزې وکړې چې له امله یې ۱ تن ۴ کلن ماشوم (منصور) په شهادت ورسید او ۱ بل ژوبل شو.۲۰۱۵/۱۱/۳

**سیداباد کې په ګوډاګیو عسکرو برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د هفت اسیا په سیمه کې دګوډاګي دښمن په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته داوښتو زیانونو په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي.۲۰۱۵/۱۱/۳

**چک کې ۲ عسکر قتل، ۳ نور ژوبل شول.**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د نورخېلو، دورانخېلو په پوستو او د مزدورو عسکرو په ټانګونو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې ۲ تنه د مزدورې اردو عسکر ووژل شول او ۳ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۴

**میدان وردګ مرکزته نژدې د پولیسو قومندان ووژل شو**

د میدان وردګ ولایت د مرکز اړوند د کوټي عشرو په سیمه کې د مزدور

پولیسو په قومندان برید ترسره شو، په برید کې قومندان ووژل شو او ۱ امریکایي توپانچه یې غنیمت شوه. ۲۰۱۵/۱۱/۴

**سیدابادکې ۳ تنه مزدور عسکر ووژل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیدا باد ولسوالۍ اړوند د سالارو په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په عسکرو بریدترسره شوچې په برید کې ۳ عسکر قتل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**چک کې په ۳ پوستو بریدونه ترسره شول**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالي اړوند د نور خېلو، دورانخېلو او دمنه سر په سیمو کې د مزدور دښمن په پوستو د درنووسلو بریدونه وشول چې په جریان کې یې دښمن ته درانه زیانونه واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**سیداباد کې د برید له امله ۱ تن عسکر قتل، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند په لوړه سیمه کې د مزدور دښمن په عسکرو بریدوشوچې په ترڅ کې ۱ عسکر قتل او ۱ بل ژوبل شو. د غه راز دشش کلا په سیمه کې هم په مزدورو عسکرو بریدوشو چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**سیدابادکې د برید له امله ۱ عسکرووژل شو**

د میدان وردګ ولایت د سید اباد ولسوالۍ اړوند د باقرخېلو په سیمه کې په مزدرو عسکرو بریدوشوچې په مهال یې ۱ تن عسکرووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**چک کې ۱ تن عسکر قتل شو، او وسله یې غنیمت شوه**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د مدو په سیمه کې په مزدورو عسکرر و برید ترسره شو، په برید کې ۱ تن مزدور عسکرووژل شواو ۱ میل شل ډزې ټوپک یې غنیمت شو. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**سیدابادکې ۱ رینجرویجاړ شو یکې ناست عسکر مړه او ژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند په لوړه سیمه کې د ګوډاګي دښمن په عسکرو بریدوشو چې په ترڅ کې یې ۱ رینجر ویجاړ شو او عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**چک کې په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند دنورخېلو او دورانخېلو په پوستو بریدونه ترسره شول. په بریدونو کې د ښمن ته د اوښتو تلفاتو په اړه کره معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**میدان وردګ مرکزکې دګوډاګي دښمن په مرکز توغندويي برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت په مرکز کې د مزدورو عسکرو په مرکز میزایل وتوغول شول، په برید کې توغندي په هدف ولګیدل او له امله یې دښمن ته درانه زیانونه واوښت. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**سیدابادکې په مزدورو عسکرو برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د سید اباد ولسوالۍ اړوند د شش کلا په سیمه کې د مزدور دښمن په پلیو عسکرو برید ترسر شو، په برید کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**جغتو کې د برید له امله ۲ عسکر ووژل شول**

دمیدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ ودانۍ ته نژدې په مزدورو عسکرو بریدوشوچې په مهال یې ۲ تنه مزدور عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**نرخ کې ۳ عسکر قتل، ۴ نور ژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت اړوند د سر پول په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پلیوعسکرو چاودنه وشوه، چاودني ۳ تنه مزدور عسکر قتل او ۴ نور ژوبل کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**سیداباد کې ۴ عسکرووژل شول اوګڼ شمیر نور ژوبل شول**

دمیدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د ماشین کلا په سیمه کې د مزدور دښمن په عسکرو چاودنه او برید ترسره شو، په پېښو کې ۴ تنه ګوډاګي عسکر ووژل شول او ګڼ شمیر نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۸

سیدابادکې ۱ عراد اکمالاتي موټر ویجاړ او یو شمیر عسکر مړه او ژوبل شول

د میدان وردګ ولایت د سیدابادولسوالۍ اړوند د باقرخېلو په سیمه کې د مزدور دښمن په عسکرو برید ترسره شو، دبرید په جریان کې ۱ اکمالاتي موټر ویجاړ شو او عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**سیداباد کې ۱ ټانک، ۱ اکمالاتي موټر په بشپړه توګه ویجاړ شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د باقرخېلو په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۱ ټانګ، ۱ اکمالاتي موټر پوره ویجاړ شول او په دې سربېره دښمن ته ځاني تلفات واوښتل، وروسته مزدورو عسکرو د عامو خلکو په کورونو د درنووسلو ډزې وکړې چې له امله یې د باقرخېلو کلي یوکور او د شش کلا سیمي د یوې لیسې تعمیر په بشپړه توګه ویجاړ شول. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**سیدابادکې ۵ عسکر قتل، ۳ نور ژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت د سیدابادولسوالۍ اړوند دشیخ اباد په سیمه کې له مزدورو عسکرو سره جګړه وشوه چې په ترڅ کې یې ۵ عسکر قتل او ۳ نور ژوبل شول، په جګړه کې ۱ مجاهد د شهادت لوړ مقام ته ورسید انا لله وانا الیه راجعون. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**سیدابادکې دګوډاګي دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د هفت اسیاو سالارو په سیمو کې د ګوډاګیو عسکرو په پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته

د اوښتې مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده تر لاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**جغتوکې ۱ ګوډاګی عسکر ووژل شو**

دمیدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ ودانۍ ته څېرمه په مزدورو عسکرو برید ترسره شوچې په مهال یې ۱ تن ګوډاګی عسکرووژل شو. ۱۱/۱۱/۲۰۱۵

**سیداباد کې په کاروان د برید له امله ۱ ټانګ، ۱ موټرویجاړ شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د تنیو په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په کاروان د سپکو اودرنو وسلو بریدونه ترسره شول، دبریدونو په جریان کې ۱ ټانګ، ۱ غټ اکمالاتي موټر ویجاړ شول او په دې سربېره دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**د جغتوولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ په مرکزي ودانۍ برید ترسره شو، په برید کې دښمن مرګ ژوبله واوښته خو د شمیر په اړه یې دقیق معلومات نه دي تر لاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**جغتوکې په اکمالاتي کاروان چاودنې ۱ ماین پال ټانګ ویجاړکړ**

د میدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ اړوند د غاشي په سیمه کې د مزدورو عسکرو په اکمالاتي کاروان چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۱ ماین پال ټانګ ویجاړشو او دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**جغتوکې په پوسته د برید له امله ۱ عسکرووژل شو**

دمیدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ اړونددغاشي په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته بریدوشوچې ۱ تن ګوډاګی عسکر پکې ووژل شو، دغه راز په یاده سیمه کې د مزدورې اردو په کاروان برید ترسره شواو په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل، دغه راز دیادې ولسوالۍ اړوند د کمکي ارباب په کلي مزدورو عسکرو ناتار دزې وکړې چې په ترڅ کې یې دهاوان مرمۍ په یوه کور راپرېوته او ۱ ښځه په کې ژوبله شوه. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**سیدابادکې ټانګ ویجاړ، ۵ تنه عسکر قتل، یوشمیر نورژوبل دي**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د ملي خېلو په سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو چاودنه او برید وشو، په برید او چاودنه کې ۱ ټانک ویجاړشو، ۵ تنه عسکر مړه اویوشمیر نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**سیدابادکې رینجرتخریب، ۲ عسکر قتل، ۲ نورژوبل شول**

دمیدان وردګ ولایت دسیدابادولسوالۍ اړوند دکهلک په سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۱ رینجر تخریب شو، ۲ تنه ګوډاګي عسکرووژل شول او ۲ تنه نور سخت ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**سیدابادکې په پلیو عسکرو برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د شیخ اباد په ډاګ بغرۍ سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو د شمیر په اړه یې دقیق معلومات نه دي رارسیدلي. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**سیدابادکې د ناڅاپي برید له امله ۳ عسکرووژل شول، ۱ بل ژوبل دی**

د میدان وردګ ولایت د سیدابادولسوالۍ اړوند په لوړه سیمه کې د ګوډاګي دښمن په عسکرو بریدترسره شو، په برید کې ۳ تنه عسکرووژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**سیدابادکې د چاودنې له امله ۱ عسکر قتل، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیدابادولسوالۍ اړوند د کج کلا په سیمه کې د مزدور دښمن په پلیو عسکرو چاودنه وشوه، چاودنې ۱ عسکروواژه او ۱ بل یې ژوبل کړ. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**جغتوکې دګوډاګیو عسکرو په پوسته برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ اړوند د عبدالمحی الدین په غاښي سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په پوسته بریدوشو، په برید کې دښمن ته د اوښتي زیان معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۲۱

**چک کې ۱ عسکرووژل شو**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د نورخېلو او دورانخېلو په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په پوستو بریدونه ترسره شول چې په ترڅ کې دښمن ته په مالي زیان علاوه ۱ تن عسکرووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**چک کې مهم قوماندان ژوبل شو، ۲ ساتونکي یې قتل شول**

دمیدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د باباکلا په سیمه کې د مزدورو عسکرو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر ویجاړ، ۲ تنه عسکرووژل شول او قوماندان (میرویس) مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**چک کې ۲ عسکرووژل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند بکسمند تتنګ په سیمه کې په مزدورو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۲ تنه مزدور عسکرووژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**جغتوولسوالۍ ودانۍ ته څېرمه په مزدورو عسکرو برید وشو**

د میدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ ودانۍ ته نژدې په ګوډاګیو عسکرو بریدوشو، په برید کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**سیدابادکې ۴ تنه عسکرووژل شول، یو شمیر نورژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اوتنیو سیمه کې د ګوډاګي دښمن له عسکرو سره جګړه وشوه، په جګړه کې ۴ تنه مزدور عسکرووژل شول او یو شمیر نور ژوبل شول. په نښته کې ۱ تن مجاهد د شهادت ولوړ

مقام ته ورسید. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**چک کې ۲ عسکرووژل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د خوساچیني په سیمه کې د مزدورو عسکرو په پوسته برید وشو، په برید کې ۲ تنه عسکر ووژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**سیدا باد کې د چاودنې له امله ۱ عسکرقتل، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د میګلیو په سیمه کې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۱ عسکرووژل شو او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**سیدا باد ولسوالۍ ته څېرمه له مزدورو عسکرو سره جګړه وشوه**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ ته نژدې د سیاچوب په سیمه کې له ګوډاګیو عسکرو سره نښته وشوه، په نښته کې دښمن ته تلفات واوښتل خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۵

**جلریزکې د جاسوسي اداري مهم کارمندووژل شو، ساتونکی یې ژوبل دی**

د میدان وردګ ولایت د جلریز ولسوالۍ اړوند زیولات په سیمه کې د جاسوسي ادارې په فعال او مهم کارمند (عبدالله) تکتیکي بریدوشو، په برید کې نوموړی ووژل شو او ۱ تن ساتونکی یې ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**چک کې رینجر تخریب، په کې سپاره عسکر مړه اوژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ اړوند د خوساچیني په سیمه کې د مزدورو عسکرو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر تخریب شو او په کې ناستو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**سیدا باد کې د مزدورو عسکرو په رینجر برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د ګډلک په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په رینجر برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات ورسېدل خو کره شمیره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**جلریزکې د مزدورد عسکرو په پوسته برید ترسره شو**

د میدان وردګ ولایت د جلریز ولسوالۍ اړوند د سې کلا په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته برید ترسره شوچې په ترڅ کې یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**چک کې ۲ اربکیان له مخالفت نه لاس په سر شول**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ د السنګ سیمي اړوند د خواجه کودګي کلي ۲ تنه اربکیان هریو شیرخان او ضیاګل د حقائقو په درک کولو له مجاهدینو سره یوځای شول او ۲ میله کلاشنکوفونه یې مجاهدینو ته تسلیم کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**سیدا باد کې د چاودنې له امله ۱ عسکرووژل شو، یوشمیر نور ژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د یوسف خېلو په سیمه کې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۱ تن مزدور عسکرووژل شو او یوشمیر نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**جغتوولسوالۍ ته نژدې ۲ګوډاګي عسکرژوبل شول**

د میدان وردګ ولایت د جغتوولسوالۍ ودانۍ ته نژدې په مزدورو عسکرو برید وشو چې په مهال یې ۲ تنه ګوډاګي عسکر مرګوني ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**سیدا باد کې تکتیکي چاودنې ۲ عسکرژوبل کړل**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ اړوند د ټوپ په سیمه کې په مزدورو عسکرو تکتیکي چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه مزدور عسکرژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**سیدا باد کې ۲ تنه مزدور عسکرووژل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ او ټړیو سیمه کې له ګوډاګیو عسکروسره نښته وشوه، په نښته کې ۲ تنه ګوډاګي عسکرووژل شول او ۱ بل ژوبل شو، وروسته مزدور دښمن د ملکي خلکو کورونه په درنو وسلو وویشتل چې له امله یې د کلي ۱ تن اوسیدونکی (سید) شهید شو او کور یې ویجاړ شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**نرخ کې د اربکي قومندان ۲ ساتونکي قتل شول ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د نرخ ولسوالۍ اړوند د بدام په سیمه کې د شریرواربکیانو عمومي قومندان (نجیب) په موټر بریدترسره شو، د برید په ترڅ کې د نوموړي موټر تخریب، ۲ تنه ساتونکي یې ووژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۸/۱۱/۲۰۱۵

**نرخ کې ۱ عسکرووژل شو او ۱ بل ژوبل شو**

د میدان وردګ ولایت د نرخ ولوالۍ د خواجه بازار په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ عسکرووژل شو او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

**سیدا باد کې په ګوډاګیو عسکروچاودنه وشوه**

د میدان وردګ ولایت د سیدابادولسوالۍ اړوند د اوټړیو په سیمه کې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه، په چاودنه کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

**د نرخ په مرکزکې د پوستې قومندان ووژل شو**

د میدان وردګ ولایت ودانۍ ته نژدې د مرو په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې د پوستې قومندان ووژل شو

او دښمن ته دروند مالي او ځاني زيان واوښت، وروسته دښمن د ولسي خلګو په کورونو د سپکو او درنو وسلو ډزې وکړې چې له امله يې د اليکې په کلي کې ۱ ميرمن په شهادت ورسيده. ۲۰۱۵/۱۱/۳۰

# لوګر

**مرکزته نژدې د خدر په کمپاين بريد ترسره شو**

دلوګرولايت د مرکز اړونددخدر په کمپاين توغندي وتوغول شول چې په هدف ولګېدل او له امله يې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**لوګرمرکزته نژدې ۲ تنه مزدور پوليس ووژل شول**

دلوګرولايت د مرکز اړونددالوزيو په سيمه کې دمزدوردښمن په پليوپوليسو بريدوشوچې په مهال يې ۲ تنه پوليس ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**برکي برک کې ۲ تنه عسکر ووژل شول**

دلوګرولايت د برکي برک ولسوالۍ اړوند د احمد کلا په سيمه کې د مزدورو عسکرو په پوسته بريد ترسره شوچې په ترڅ کې يې د اردو ۲ تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**لوګرمرکزته څېرمه ۵ تنه پوليس او اربکيان ووژل شول**

دلوګرولايت د مرکز اړوند د سيدحبيب الله کلا په سيمه کې په مزدورو پوليسو او اربکيانو بريد ترسره شو چې په مهال يې ۵ تنو پوليسو او اربکيانو ژوند له لاسه ورکړ. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**چرخ کې رينجرويجاړشو په کې سپاره ۴ تنه عسکر له منځه لاړل**

دلوګرولايت د چرخ ولسوالۍ اړوند د ډبرو پوستې ته څېرمه د ګوډاګيو عسکرو په رينجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رينجر ويجاړشو او په کې سپاره ۴ تنه عسکرووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**لوګرمرکزته نژدې په پوسته دبريد له امله ۲ عسکرووژل شو ۱ بل ژوبل دی**

دلوګرولايت د مرکز داړوند د پادخواب په سيمه کې د غونډۍ په پوسته د لاسي بمونو بريدونه ترسره شول، په بريدونو کې د ګوډاګي دښمن ۲ تنه عسکر قتل شول او ۱ بل مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵/۱۱/۶

**محمداغه کې په مزدرو عسکرو بريد ترسره شو**

دلوګرولايت د محمداغې ولسولۍ اړوند زرغون ښار په سيمه کې د مزدورې اردو په عسکرو بريد ترسره شو، په بريد کې د دښمن ته زيان واوښت خو په اړه يې کره معلومات نه ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**محمداغه کې ۶ تنه اربکيان قتل، ۴ نور سخت ژوبل شول**

دلوګرولايت دمحمداغې ولسوالۍ اړوند دهنو په سيمه کې په پليو اربکيانو چاودنه وشوه، چاودنې ۶ تنه اربکيان ووژل او ۴ تنه نوريې ژوبل کړل. دغه راز ديادې ولسوالۍ اړوند دغزني خېلو په سيمه کې مجاهدينو د يووسلوال بريد په پای کې يوه پوسته فتحه کړه. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**محمداغه کې ۳ تنه مزدور عسکرووژل شول**

دلوګرولايت د محمداغې ولسوالۍ اړوند په زرغون ښار سيمه کې له اجيرو عسکرو سره نښته وشوه چې په مهال يې ۳ تنه مزدور عسکرووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**برکي برک کې رينجرويجاړشو، ۴ اربکيان مړه او ژوبل شول**

دلوګرولايت د برکي برک ولسوالۍ اړوند دشيروازه په سيمه کې د شريرو اربکيانو په موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رينجر ويجاړ شو، ۲ تنه اربکيان ووژل شول او ۲ نور مرګوني ټپيان شول. ۱۱/۱۱/۲۰۱۵

**محمداغه کې د چاودنې له امله ۱ عسکرووژل شو**

دلوګرولايت د محمداغې ولسوالۍ اړوند زرغون ښار په سيمه کې د ګوډاګي دښمن په پليو عسکروچاودنه وشوه چې له امله يې ۱ تن د مزدورې اردو عسکرووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**محمداغه کې دښمن د شپې د چاپې په مهال ۳ تنه عام وګړي بنديان کړل**

دلوګرولايت د محمداغې ولسوالۍ د زرغون ښار په کلي خارجي يرغلګرو او داخلي ګوډاګيو عسکرو وحشيانه چاپه ووهله، وحشي عسکرو د چاپې په مهال څو شمېر کليوال ووهل او ۳ تنه عام ملکي وګړي يې بنديان کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**لوګرمرکزته نژدې د چاودنې له امله ۱ عسکر قتل، ۱ بل ژوبل دی**

دلوګرولايت د مرکز اړوند پادخواب ته نژدې د فيض کاريز په سيمه کې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۱ ګوډاګی عسکر ووژل شو او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**لوګرمرکزته نژدې په يوه بريد کې ۲ عسکرووژل شول**

دلوګرولايت د مرکز اړوند د الياس خان کلا د پوستې په پليو عسکرو بريد ترسره شوچې په مهال يې ۲ تنه عسکرووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**لوګرمرکزته نژدې رينجرويجاړ، ۱ عسکر قتل، ۱ بل ژوبل شو**

دلوګرولايت دمرکز اړوندبوت کاريز سيمه کې دمزدورو عسکرو په رينجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رينجر ويجاړ، ۱ عسکر قتل او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**لوګر مرکزته نژدې د جاسوسي اداري ۱ کارمند ووژل شو**

دلوګرولايت د مرکز اړوند د مير عبدالوهاب په غونډۍ د جاسوسي اداري په کارمندانو بريدوشوچې په مهال يې د يادې اداري ۱ تن کارمند ووژل شو. د يوبل خبر له مخې د خوشي ولسوالۍ اړوند د کاريز کلي اوسيدونکی

۱ تن عسکر (محمدنظیف) د حقائقو په درک کولو د مزدوري ادارې له لیکو نه را بیل او مجاهدینو ته تسلیم شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۷

**برک برک کې د مزدورو عسرو په پوسته برید ترسره شو**

دلوګر ولایت د برک برک ولسوالۍ اړوند چلتن په سیمه کې د مزدورو عسکرو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې پوستې ته په زیان سربیره دښمن ته هم مرګ ژوبله واوښته، دغه راز دیادې ولسوالۍ په مرکزي ودانۍ توغندیز برید ترسره شو چې له امله یې دښمن ته زیان واوښت. ۲۰۱۵/۱۱/۱۷

**لوګر مرکزته نژدې ۱ څارنوال قتل، د عدلیې اوڅارنوالۍ رئیسان ژوبل شول**

د لوګرولایت د مرکز اړوند د پورک په سیمه کې د څارنوالۍ د رئیس (حکیم نورزي) د یاد ولایت د عدلیې د رئیس (تراب) په موټر برید ترسره شو، د برید په ترڅ کې موټر ویجاړ شو، ۱ تن څارنوال قتل، دعدلیې رئیس او د څارنوالۍ رئیس مرګوني ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**لوګرمرکزته څېرمه ۱ تن مهم اربکی مرګوني ټپي شو**

دلوګر ولایت د مرکز اړوند فاميلي ته نژدې په شریرو اربکیانو چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ تن اربکی (ملا) مرګوني ټپي شو. ۱۹/۱۱/۲۰۱۵

**لوګر پول عالم ته څېرمه په مزدورو عسکرو چاودنه ترسره شوه**

د لوګرولایت پل عالم تـه نژدې خوشي ولسوالۍ تـه پـه غزیـدلې لار د ګوډاګیو عسکرو په کاماز موټر چاودنه وشوه چې له امله یې موټر ویجاړ شو، وروسته سیمي ته ګڼ شمیر اربکیان راغلل چې د مجاهدینو له بریدونو سره مخ شول او په مهال یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**څرخ ولسوالۍ په ودانۍ برید ترسره شو**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په مرکزي ودانۍ د درنو وسلو بریدونه ترسره شول، په بریدونوکې د ولسوالۍ ودانۍ ته په درانه زیان سربیره ۲ تنه ګوډاګي عسکرووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**لوګر مرکزته نژدې ۱ عسکرقتل، ګڼ نور ژوبل شول**

د لوګرولایت د مرکز اړوند پاتخواب سیمي ته نژدې د اشرف خان غونډۍ کې په ګوډاګیو عسکرو چاودنه وشوه، چاودنې ۱ عسکرقتل او ګڼ شمیر نور ژوبل کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**مرکز ته نژدې په تکتیکي چاودنه کې ۲ عسکرووژل شول**

دلوګر ولایت د مرکز اړوند خدر کمپائن په نظام قراول کې تکتیکي چاودنه وشـوه چـې لـه املـه یـې ۲ تنـه ګـوډاګي عسـکر ځای پـه ځـای ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**لوګرمرکزته نژدې موټر تخریب، ۱ عسکرقتل، ۱ بل ژوبل شو**

د لوګر ولایت د مرکز اړوند د وني سفلا په سیمه کې د جاسوسي ادارې د کارمندانو په موټر برید ترسره شو، په برید کې موټر تخریب، ۱ تن عسکر قتل او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**لوګر مرکزکې د چاودنې له امله ۱ عسکرژوبل شو**

دلوګرولایت د مرکز اړوند پادخواب شانه په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ عسکر مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

**څرخ کې ۲ تنه عسکر مرګوني ټپیان شول**

دلوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ اړوند خواجه اسماعیل د پوستې په پلیو عسکرو بریدترسره شو چې په مهال یې ۲ تنه مزدور عسکر ژور ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

**لوګرمرکزکې ۲ تنه پولیس ووژل شول ۱ بل ژوبل شو**

دلوګر ولایت د مرکز اړوند دوشنبه په سیمه کې د ګوډاګیو پولیسو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۲ تنه پولیس ووژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

**محمداغه کې د ابوټا نکرویجاړ، ۲ عسکرووژل شول**

د لوګر ولایت د محمداغه ولسوالۍ اړوند د زرغون ښار په سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو چاودنه وشوه، په چاودنه کې ټانکر په بشپړه توګه ویجاړ او ۲ عسکرووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

## خوست

**خوست مرکزته نژدې په زاړه میدان توغندویي برید ترسره شو**

د خوست ولایت مزکز ته څېرمه په زاړه میدان توغندویي برید ترسره شو، په برید کې د ښمن ته درانه زیانونه واوښتل خو په اړیې کره معلومات ندي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۱

**د سپیري ولسوالۍ اکمالاتي لاري بندي شوي**

دخوست ولایت د سپیري ولسوالۍ مرکز د مجاهدینو تر بریدونو لاندي راغی، دبریدونو په ترڅ کې څوځلي د دښمن چورلکي راغلي چې د مجاهدینو د بریدونو له امله بیرته وتښتیدلې، دغه راز یادي ولسوالۍ ته غزیدلي ټولې اکمالاتي لارې مجاهدینو د دښمن په مخ وتړلې، دیوبل خبر له مخې د موسی خېلو ولسوالۍ اړوند د غیلنګ په سیمه کې د مزدورو عسکرو په پوسته بریدوشو چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۱

**ځاځي میدان کې د مزدور عسکرو په پوستو بریدونه ترسره شول**

د خوست ولایت د ځاځي میدان ولسوالۍ اړوند د شاوي په سیمه کې د مزدورو عسکرو په پوستو د سپکو او درنو وسلو بریدونه ترسره شول چې له امله یې دښمن ته درانه تلفات واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**علیشیروکې په پوسته برید ترسره شو**

د خوست ولایت د علیشیروولسوالۍ مرکزته څېرمه د تریزیو په سیمه کې دمزدور دښمن په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته داوښتي زیان معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**نادرشاکوټ کې ۲ عرادې رینجرویجاړ،۱۰ عسکرووژل شول**

د خوست ولایت د نادرشاکوټ ولسوالۍ اړوند سیموکې دمزدور دښمن په پوستاوعسکرو بریدونه وشول، دبریدونو په مهال د دښمن ۱ رینجر په ماین والوزول شوچې پوره ویجاړ او ۶ عسکر په کې ووژل شول، د غه راز د تیاره منځ په سیمه کې هم د مزدور دښمن په رینجر موټر چاودنه وشوه چې له امله یې رینجر تخریب او پکې سپاره ۴ تنه ګوډاګي عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**نادرشاه کوټ کې د دښمن ګڼ شمیر عسکر مړه او ژوبل شول**

د خوست ولایت د نادر شاه کوټ ولسوالۍ اړوند د کانې په سیمه کې د مزدور دښمن له هغو عسکرو سره چې له مرکز نه سیمې ته د کومک په موخه راغلي وو، سخته جګړه وشوه، په جګړه کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته او د تلفاتو په لیدلو سره له سیمې وتښتېدل. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**سپیره کې دګوډاګیو عسکرو په کاروان برید ترسره شو**

د خوست ولایت د سپیرې ولسوالۍ اړوند د میچن کمپاین د عسکرو په کاروان د سپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، د برید له امله دښمن ته تلفات واوښتل خو کره شمیر ه یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**درګه کې په پوسته د برید له امله دښمن ته تلفات واوښتل**

دخوست ولایت د درګې ولسوالۍ اړوند د سیګۍ په سیمه د مزدور دښمن په پوسته د لاسي بمونو برید ترسره شو، په برید کې د ښمن ته درانه تلفات واوښتل خو په اړه یې معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**علیشیروکې ۲ پولیس قتل، ۳ نور سخت ژوبل شول**

د خوست ولایت د علیشیروولسوالۍ اړوند د ببرک تانې په سیمه کې په مزدورو پولیسو د سپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، د برید په مهال د مزدور دښمن ۲ تنه پولیس قتل او۳ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**صبریوکې په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه**

دخوست ولایت د صبریوولسوالۍ اړوند د خلیسات بازار ته څېرمه په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**صبریوکې ۲ عسکرووژل شول، ۲ نورژوبل شول**

د خوست ولایت د صبریوولسوالۍ اړوند د یعقوبیو بازارته څېرمه اباد خاني ته په غزیدلي لویه لار په مزدورو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه مزدور عسکر ووژل شول او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**علیشیروکې ۳ پولیس قتل، ۴ نورژوبل شول**

د خوست ولایت د علیشیروولسوالۍ اړوند د ببرک دخوازې په سیمه کې په پولیسو دسپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، په برید کې ۳ تنه مزدور پولیس قتل او ۴ نور سخت ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**د ځاځي میدان ولسوالۍ په ودانۍ توغندویي برید ترسره شو**

د خوست ولایت د اړوند د ځاځي میدان ولسوالۍ په ودانۍ توغندویي برید ترسره شو، په برید کې توغندي په هدف ولګېدل او له امله یې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۰

**علیشیروکې مزدورو عسکرو ۲ تنه ولسي خلک ووژل**

د خوست ولایت د علیشیروولسوالۍ اړوند د درویزګي په سیمه کې د کمپاین عسکرو په ملکي خلکو وحشیانه عملیات ترسره کړل چې په ترڅ کې یې ۲ تنه بې دفاع ملکي وګړي شهیدان شول. ۱۱/۱۱/۲۰۱۵

**صبریوکې له دښمن سره سخته جګړه وشوه**

د خوست ولایت د صبریوولسوالۍ اړوند د قاسم او ړندفقیرانو په سیموکې له هغو مزدورو عسکرو سره سخته جګړه وشوه چې سیمو ته د چورلکو په توسط رانښکته شول، په جګړه کې دښمن ته تلفات واوښتل خوکره شمیره یې نه ده معلومه شوې. ۱۱/۱۱/۲۰۱۵

**باک کې د مزدورو پولیسو په پوسته برید ترسره شو**

د خوست ولایت د باک ولسوالۍ پهلوان خېلو ته څېرمه د چنارګي په سیمه کې د مزدرو پولیسو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتوزیانونو په اړه کره شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۱/۱۱/۲۰۱۵

**علیشیروکې ۲ تنه پولیس مرګوني ټپیان شول**

دخوست ولایت د علیشیروولسوالۍ اړوند دخورمي په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پولیسو برید ترسره شو او ۲ تنه مزدور پولیس پکې مرګوني ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۳

**موسی خېلو کې ۱ عسکرووژل شو ۲ نور ژوبل شول**

د خوست ولایت د موسی خېلو ولسوالۍ ته څېرمه د ګوډاګي دښمن په پلیو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۱ مزدور عسکرووژل شو او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۳

**سپیرې کې د مزدورو عسکرو په کاروان برید ترسره شو**

د خوست ولایت د سپیرې ولسوالۍ اړوند د غورمي په سیمه کې د مزدورو عسکرو په کاروان برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو

کره شمیره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**باک کې د پولیسو په پوسته برید ترسره شو**

د خوست ولایت د باک ولسوالۍ اړوند پهلوان خېلو کلي ته نژدې د چنارګي په سیمه کې د مزدورو پولیسو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې د پوستي ودانۍ ته په اوښتي زیان سربیره دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**سپیره کې ۲۰ تنه خارجي او داخلي عسکر مړه اوژوبل شول**

د خوست ولایت د سپیرې ولسوالۍ اړوند دریزو اومندتي په سیمو کې ا شغالګرو او د هغوی ګوډاګیو عسکرو د ملکي خلکو په کورونو چاپې ووهلې چې د مجاهدینو له بریدونو سره مخ شول، په خونړۍ نښته کې ۴ تنه امرکایي عسکر او ۷ تنه داخلي ګوډاګیان ووژل شول، ۳امریکایي او ۶ تنه اجیر عسکر ژوبل شول، د جګړې په مهال بې رحمه دښمن د عامو خلکو په کورونو وحشیانه بمبارۍ وکړې چې له امله یې ا ښځه، ۳ تنه تنکي ماشومان شهیدان شول، د ښمن له سیمې نه د تېښتي په مهال ۲ تنه کلیوال یووړل، په نښته کې ا تن مجاهد شهید شو او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**مندوزیو کې په پوسته برید ترسره شو**

د خوست ولایت د مندوزیو ولسوالۍ اړوند د مزغوره غونډۍ په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته داوښتي زیان معلومات نشته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**مرکزته نژدې رینجر ویجاړ، ۲ پولیس قتل، ۳ نور ژوبل شول**

د خوست ولایت د مرکز ته څېرمه د صحرا باغ لویې اډې ته نژدې د مزدورو پولیسو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر ویجاړ، ۲ تنه پولیس ووژل شول او ۳ نور سخت ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**مرکز ته نژدې ۲ پولیس ووژل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د خوست ولایت د مرکز اړوند دمنګسود غره په سیمه کې په پلیو پولیسو دویشتونکي ماین چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه مزدور پولیس ووژل شول او ا بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**مرکزه ته نژدې په چاودنه کې ۱ پولیس قتل او ۲ نور ژوبل شول**

د خوست ولایت د مرکز اړوند دخوني خواړ په سیمه کې په پلیو پولیسو چاودنه وشوه، چاودنې ۱ پولیس قتل او ۲ نور ژوبل کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**نادرشاه کوټ کې رینجر ویجاړ او ۴ تنه پولیس ووژل شول**

د خوست ولایت د نادرشاکوټ ولسوالۍ اړوند د شین چم په سیمه کې د مزدورو پولیسو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر ویجاړ او ۴ تنه پولیس ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۱

**خوست مرکزته نژدې په زاړه میدان توغندویي برید وشو**

د خوست ولایت مرکز ته څېرمه په زاړه میدان توغندیز برید ترسره شو، په برید کې د ښمن ته مرګ ژوبله ورسېده خو دقیق شمیرېې نه دی تر لاسه شوی. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**موسی خېلو کې د مزدورو پولیسو په پوسته برید وشو**

د خوست ولایت د موسی خېلو ولسوالۍ اړوند د سرو په پوسته د سپکو اودرنو وسلو برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**موسی خېلو کې د چاودنې له امله ۲ پولیس قتل شول ۱ بل ژوبل شو**

د خوست ولایت د موسی خېلو ولسوالۍ اړوند د څنډې په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پلیو پولیسو چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۲ تنه مزدور پولیس قتل شول او ا بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۵

**نادرشاه کوټ کې رینجرویجاړ، په کې سپاره ۳ پولیس قتل، ۲ نورژوبل شول**

د خوست ولایت د نادر شاه کوټ ولسوالۍ اړوند د لاټکو په سیمه کې د ګوډاګیو پولیسو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر ویجاړ، ۳ عسکرووژل شول او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۵

**ځاځي میدان کې په شریروار بکیانو برید وشو**

دخوست ولایت د ځاځي میدان ولسوالۍ اړوند دډنډې اپان په سیمه کې په اربکیانو دسپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو کره شمیره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**خوست مرکزته نژدې د چاودنې له امله ۳ پولیس قتل شول، ۱ بل ژوبل دی**

د خوست ولایت د مرکز ته څېرمه د لکنواړوند د تور کانې په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په پلیو پولیسو چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۳ تنه ګوډاګي پولیس ووژل شول او ا بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**صبریو کې د مزدورو عسکرو په پوسته برید وشو**

د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ د یعقوبیو بازار ته څېرمه د مزدورو عسکرو په پوسته بریدونه ترسره شول، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو دقیق شمیر یې لانه دی څرګند شوی. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**صبریو کې د ښمن د شپې د چاپې په مهال ۲ تنه عام وګړي بندیان کړل**

دخوست ولایت د صبریوولسوالۍ اړوند د مکتب اوموچې په سیمو کې دښمن د عامو خلکو په کورونو وحشیانه چاپې ووهلې، عسکرو د تلاشي په مهال خلک ووهل، شتمنۍ یې ورځني لوټ کړې، د سیمې د غریبو خلکو ۲ دوکانونه یې په منفجره موادو ویجاړ کړل او ۲ تنه عام کلیوال یې بندیان کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**صبریو کې د دښمن په کمپائن برید وشو**

د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ اړوند د خلبسات په سیمه کې د مزدورو عسکرو په کمپاین برید وشو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۳۰

# پکتیا

**پټان کې ۴ پوستې فتحه اوګڼ شمیر عسکر ووژل شول**

د پکتیا ولایت د پټان ولسوالۍ اړوندو سیمو کې د دښمن په ګڼو پوستو تعرضي بریدونه ترسره شول، د بریدونو په جریان کې ۴ پوستې فتحه شوې، د۳ عسکر وژل شوي وعسکر جسدونه د جګړې په ډګر کې پاته شول او ۷ تنه نور سخت ژوبل شول، په جګړه کې ۱ رینجر۱ ډامپره په بشپړه توګه تخریب شول او مجاهدینو په پوستو کې ۲ دهشکې، ۳ راکټ، ۱ پیکا ماشیندار، ۱ کلاشنکوف او ۱ آس په غنیمت ونیول، د نښتې په جریان کې ۲ تنه مجاهدین شهیدان او ۳ تنه نور ژوبل شول.۲۰۱۵/۱۱/۱

**شهرنو کې د مزدورو عسکرو په مرکز توغندويي برید ترسره شو**

د پکتیا ولایت د شهرنو ولسوالۍ اړوندسیمه کې دمزدورو عسکرو په مرکز توغندیز برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته زیان واوښت خو په اړه یې ترد ې دمه کره معلومات ندي ترلاسه شوي.۲۰۱۵/۱۱/۱

**پکتیا مرکزګردیزاړوند ۲ عسکرقتل، په زرمت کې ۲ مرګوني ټپیان شول**

د پکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ اړوند دمقرب خېلو په سیمه کې د مزدور دښمن په پلیوعسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ عسکر مرګوني ټپیان شول. دغه راز د مرکز ګردیز اړوند ابراهیم خېلو په سیمه کې په لوی سرک او د فقیرخاک په پوسته بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې پوسته تخریب شوه او ۲ مزدور عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱

**د احمد خېلو په ولسوالۍ د درنو وسلو بریدونه وشول**

د پکتیاولایت د احمدخېلو په ولسوالۍ د درنووسلو بریدونه ترسره شول چې په ج ترخ کې یې دښمن ته درانه ځاني او مالي زیانونه واوښتل، دغه راز د یادې ولسوالۍ د شوات په سیمه کې هم د دښمن ۱ ټانګ ویجاړ شو، یو بل خبر وایي چې مجاهدینو د دښمن په مخ د جاني خېلو ولسوالۍ او شهرنو اکمالاتي لارې په بشپړه توګه بندې کړې. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**سید کرم کې ۱ ټانک، ۱ رینجرویجاړ، ۱۶ پولیس مړه او ژوبل شول**

د پکتیاولایت د سیدکرم ولسوالۍ اړوند د جان غونډې په سیمه کې په مزدورو پولیسو برید ترسره شو، د برید په مهال ۱ ټانګ تخریب شو او ۱۱ پولیس مړه او ژوبل شول، وروسته نورو پولیسو غوښتل چې تخریب شوي ټانګ انتقال کړي چې تر برید لاندې راغلل او د تلفاتو په لیدلو سره شا تګ ته اړ شول، دغه راز د یادې ولسوالۍ اړوند د چینو په سیمه کې هم د مزدور وعسکرو په رینجر چاودنه وشوه چې له امله یې رینجر ویجاړ شو، ۲ عسکر قتل او ۳ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**په ګردیز ښارکې د مزدورو پولیسو په مرکز برید ترسره شو**

د پکتیاولایت مرکزګردیز کې دمزدورو پولیسو په تش په نوم قطعه منتظرې په مرکز توغندويي برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته درانه تلفات واوښتل خو په اړه یې کره معلومات ندي ترسره شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**احمد خېلو کې په مزدورو عسکرو برید ترسره شو**

د پکتیاولایت د احمدخېلو ولسوالۍ اړوند د حسن خېلو په سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو عسکرو چې د لارې د خلاصیدو په موخه راغلي وو، برید ترسره شو چې په مهال یې دښمن ته درانه زیانونه واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**د شهرنو په ولسوالۍ توغندويي برید ترسره شو.**

د پکتیاولایت د شهرنو په ولسوالۍ توغندويي برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو په هکله یې دقیق معلومات نه دي ترلاسه شوي.۲۰۱۵/۱۱/۳

**زرمت کې ۱ عسکر قتل شو، ۳ نور ژوبل دي**

د پکتیا ولایت د زرمت ولسوالۍ اړوند د کولالګو په سیمه کې په کمپاین توغندويي برید ترسره شو، د برید له امله ۱ عسکر ووژل شو او ۳ نور ټپیان شول.۲۰۱۵/۱۱/۳

**ځاځي اریوب کې په پوسته د برید له امله ۳ عسکر ژوبل شول**

د پکتیاولایت د ځاځي اریوب ولسوالۍ اړوند د خیر میني په سیمه کې د مزدور دښمن په لویه پوسته برید وشو چې په مهال یې ۳ تنه عسکر ژوبل شول.۲۰۱۵/۱۱/۳

**وزي کې د مزدورو عسکرو پرکمپاین بریدونه ترسره شول**

د پکتیاولایت د وزي ولسوالۍ اړوند سروخېلو سیمه کې د سواکیو په کمپاین د درنو وسلوبریدونه ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو شمېره نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۴

**جاني خېلو ولسوالۍ پر مرکزاو پوستو بریدونه ترسره شول**

د پکتیاولایت د جاني خېلو ولسوالۍ په مرکز او شاوخوا پوستو د درنو وسلو بریدونه ترسره شول، د بریدونو په جریان کې د ښمن ته درانه تلفات واوښتل خو په اړه یې کره معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**پکتیا مرکزته نژدې ۳ اربکیان قتل، ۲ تنه نور ژوبل شول**

د پکتیاولایت د مرکز ته څېرمه د بټي په سیمه کې غزني ته په غزیدلي لویه لار په شریرو اربکیانو برید ترسره شو، د برید له امله ۳ تنه شریر اربکیان قتل او ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**جاني خېلو کې ۱ عسکر قتل، ۱ بل ژوبل شو**

د پکتیاولایت د جاني خېلو ولسوالۍ اړوند د رشپیکي په کنډو سیمه کې له مزدوروعسکرو سره جګړه وشوه، د جګړې په جریان کې ۱ عسکرووژل شو او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**سید کرم کې ۱ تن پولیس مجاهدینو ته تسلیم شو**

د پکتیاولایت د سیدکرم ولسوالۍ اړوند د خانخېلو کلي اوسیدونکی ۱ تن پولیس (ولي خان) له مزدورې اداري نه راجلا او مجاهدینو ته تسلیم شو. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**جاني خېلو کې ۵ عسکر مړه اوژوبل شول**

دپکتیا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ اړوند د رشپیکي کنډو په سیمه کې له مزدورو عسکرو سره چې سیمي ته دلاري خلاصولو په موخه راغلي و، سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ۵ تنه عسکر مړه او ژوبل شول او نور دتلفاتو په لیدلو سره وتښتېدل. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**زرمت کې ۱ تن ماشوم د سړي تښتونکو له منګولو نه وژغورل شو**

د پکتیا ولایت په زرمت ولسوالۍ کې مجاهدینو د احمد ابا ولسوالۍ اړوند د عیسی خېلو د کلي یو اوسیدونکی ماشوم (جاوید) چې اختطافکړو یوه میاشت وړاندې دګردیز له ښاره نه تښتولی د سړي تښتونکو له ظالمو منګولو نه را خلاص کړ او تښتونکي یې ونیول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۱

**زرمت کې اشغالګروعسکروعام خلک ووهل اوشتمنۍ یې ورځخه لوټ کړې**

د پکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ اړوند د څهار کلا په سیمه کې د امریکایي اشغالګرو عسکرو له لوري په ملکي خلکو وحشیانه چاپه ووهل شوه، وحشي عسکرو عام ولسي وګړي سخت شکنجه کړل او شتمنۍ یې ورځخه لوټ کړې. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**زرمت کې ۵ عسکر قتل، ۱ ټانګ، ۱ رینجر ویجاړشول**

د پکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ اړوند د زاو سیمي ته نژدې په لویه لار دګوډاګیو عسکرو په کاروان برید ترسره شو، د برید په مهال ۵ تنه عسکر ووژل شول، ۱ ټانګ او ۱ رینجر په بشپړه توګه ویجاړ شول، په نښته کې ۱ تن مجاهدهم ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**ګردیز ته نژدې رینجرویجاړ، ۱ پولیس قتل او۱ بل ژوبل شو**

د پکتیاولایت مرکز ګردیز ته نژدې د مزدرو پولیسو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر په بشپړه توګه ویجاړ او ۱ پولیس ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**پکتیا مرکزته څېرمه په پوسته د برید له امله ۱ پولیس ژوبل شو**

د پکتیاولایت د مرکز ګردیز اړوند د ساده کلا په سیمه کې د ګوډاګیوپولیسو په پوسته کې یو پولیس په دراز کوف وویشتل شو چې مرګوني ټپي شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**سید کرم کې رینجر تخریب، ۲ عسکر ژوبل شول**

د پکتیاولایت د سیدکرم ولسوالۍ مرکزته نژدې د حسن خېلو په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر تخریب او ۲ تنه ګوډاګي عسکر ژور ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**جاني خېلو کې ۱ عسکرووژل شو او ۱ بل ژوبل شو**

د پکتیا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ اړوند د رباط به سیمه کې د ګوډاګي دښمن په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکرووژل شو او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱٦

**څمکنو کې د ماین چاودنې ۳ اربکیان ژوبل کړل**

د پکتیاولایت د څمکنوولسوالۍ اړوند دلوړي په سیمه کې په پلیو اربکیانو چاودنه وشوه چې له امله یې ۳ اربکیان سخت ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۷

**زرمت کې ۱ پولیس ژوند له لاسه ورکړ**

د پکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ اړوند د کوهي په سیمه کې ۱ تن پولیس په درازکوف وویشتل شو چې ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۷

**لجه منګل ولسوالۍ په ودانۍ او پوستو بریدونه ترسره شول**

د پکتیاولایت د لجه منګل ولسوالۍ په ودانۍ او شاوخوا دفاعي پوستو بریدونه ترسره شول. د بریدونو په جریان کې دښمن ته تلفات واوښتل خو شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**مرکز ته څېرمه د قومندان په ګډون ۲ اربکیان ژوبل شول**

د پکتیاولایت د مرکز ګردیز اړوند د چونۍ رباط په سیمه کې په شریرو اربکیانو برید ترسره شو، په برید کې د اربکیانو د قومندان په ګډون ۲ تنه سخت ژوبل شول او ۲ عرادې موټرسایکلان په غنیمت ونیول شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**مرکزته نژدې چاودنې ۱ عسکرووواژه**

د پکتیاولایت د مرکز ګردیز اړوند د چونۍ په سیمه کې په پلیو عسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ تن عسکرووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**پکتیا مرکزته څېرمه ټانک تخریب، په کې سپاره ۳ عسکرقتل شول**

د پکتیاولایت د مرکز ګردیز اړوند د چونۍ په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په عسکرو برید ترسره شو، په برید کې د دښمن ۱ ټانګ تخریب او په کې سپاره ۳ عسکر قتل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**احمداباکې دچاودنه له امله ۲ تنه پولیس له منځه لاړل**

د پکتیاولایت د احمداباولسوالۍ اړوند دمچلوپه سیمه کې په پلیوعسکرو چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ تنه مزدور پولیس ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۴

**ځمکنوکې د تعلیم اوتربیې مسئولینو شانداره غونډه جوړه کړه**

د پکتیاولایت د ځمکنو ولسوالۍ اړوند نوزي خوله په سیمه کې د اسلامي امارت دتعلیم او تربیې د مسئولینو په نوښت د قرآن کریم د قاریانو ترمنځ د تجوید د مسابقې په موخه یوه لویه غونډه جوړه شوه، په غونډه کې له ۳ ولسوالیو (ځمکنو، جاني خېلو او ډنډ پټان )څخه د ۱۵ مدرسواو ۱۰ دارالحفاظونو استادانو، شاګردانواو دسیمي ۶۰ تنه علماء کرامو، ګڼ شمیر مخورو او عامو خلکو برخه واخیسته او په منظم ډول پای ته ورسېده. ۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**سیدکرم کې د تعلیم اوتربیې په اړه یوه لویه غونډه وشوه**

د پکتیاولایت د سیدکرم ولسوالۍ اړوند دکوه سین په سیمه کې داسلامي امارت د تعلیم او تربیې مسئولینو په نوښت یوه لویه غونډه جوړه شوه، یادې غونډې ته ګڼ شمیر د مکاتبو استادان، زده کونکي، او عام خلک راغلي وو، په غونډه کې د ګېو سیمولکه کوهسین، نسوان کلګر، سجنک، عثمان خېلو، بوکر ابتدائیه، جهادیه، مسک کاریز، او نورز خېلو سیمي لیسو او مکتبونو ۱۵۰ تنه شاګردانو د نبوي سیرة په برخه کې مسابقې وکړې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۶

**پکتیا مرکزته نژدې په پوسته دبرید له امله ۱ پولیس ووژل شو**

د پکتیاولایت د مرکز ګردیز اړوند د ابراهیم خېلو په سیمه کې د مزدورو پولیسو په پوسته کې یو پولیس په درازکوف وویشتل شوچې ځای په ځای قتل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**زرمت کې ۵ تنه پولیس ووژل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د پکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ اړوند د مموزوپه سیمه کې په مزدورو پولیسو تعرضي برید ترسره شو، په برید کې ۵ تنه ګوډاګي پولیس ووژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**جاني خېلو کې په پوسته برید وشو**

د پکیتاولایت د جاني خېلو ولسوالۍ اړوند سیمه کې د مزدورو پولیسو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خود شمیر په اړه یې کره معلومات نه دي رارسیدلي. ۲۰۱۵/۱۱/۲۸

**زرمت کې ټانګ تخریب، ۳ عسکرووژل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د پکتیاولایت د زرمت ولسوالۍ اړوند د ګلالګو په سیمه کې په مزدورو عسکرو برید وشو، په برید کې ۱ ټانګ تخریب، ۳ عسکر قتل شول، ۱ بل ژوبل شو، په نښته کې ۱ تن مجاهدژوبل شو. ۲۸/۱۱/۲۰۱۵

**مرکزکې ۲ رینجرویجاړ، ۲ عسکرقتل شول، ۱ بل ژوبل شو**

د پکتیاولایت د مرکز ګردیز اړوند د ابراهیم خېلو په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په کاروان برید ترسره شو، د برید په ترځ کې ۲ عرادې رینجرویجاړ، ۲ عسکرووژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

**مرکزکې رینجرویجاړ، ۱ عسکرقتل، ۲ تنه ژوبل شول**

د پکتیاولایت د مرکز ګردیز اړوند کابل ته په غزیدلي لویه لار په مزدورو پولیسو چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ تن پولیس ژور ټپي شو، دغه راز په ابراهیم خېلو سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په رینجر موټر هم چاودنه وشوه، چاودني موټر تخریب او ۲ عسکر ژوبل کړل. یوبل خبر له وایي چې د زرمت ولسوالۍ اړوند د سورکي په سیمه کې ۱ تن ګوډاګی عسکر ( جعفر ) د مجاهدینو له لوري ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

---

# پکتیکا

---

**ارګون کې ۱ مزدور عسکر ووژل شو**

د پکتیکا ولایت د ارګون ولسوالۍ اړوند د پیرکوټي په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په عسکرو بریدوشو چې په مهال یې ۱ مزدور عسکر ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**یوسف خېلو کې ۱ پولیس قتل، ۱ بل ژوبل شو**

د پکتیکاولایت د یوسف خېلو ولسوالۍ اړوند د مشخېلو کلي ته څېرمه د مزدورو پولیسو په رینجر چاودنه وشوه، چاودني ۱ تن ګوډاګی پولیس قتل او ۱ بل ژوبل کړ. ۲۰۱۵/۱۱/۴

**وازه خواکې مجاهدینو د مهمان کلا کلي په پولیزه توګه فتحه کړ**

د پکتیکا ولایت د وازه خو ولسوالۍ مرکز ته څېرمه د مهمان کلا کلي د مزدر د ښمن له ناولي شتون څخه په بشپړه توګه تصفیه شو او ګوډاګیو پولیسو او اربکیان له خپلو پوستو وتښتیدل. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**جاني خېلو کې د شریرواربکیانو په کاروان برید ترسره شو**

د پکتیکا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ اړوند د خنجکو په سیمه کې د شریرو اربکیانو په کاروان برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته زیان واوښت خو په اړه یې کره معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**چاربران کې ۱ تن شریر اربکی ووژل شو**

د پکتیکا ولایت د چاربران ولسوالۍ اړوند د سپینه کلي اوسیدونکي ۱ تن اربکي په تکتیکي برید کې ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**وازه خوا کې دقومندان پهګدونه ۲ پولیس ووژل شول ۳ نورژوبل دي**

د پکتیکاولایت د وازه خواولسوالۍ اړوند دزړ کلي په سیمه کې دمزدور دښمن په پولیسو برید ترسره شو، په برید کې دقومندان (عبدالحی) په ګډون ۲ ګوډاګي پولیس ووژل شول او ۳ نور سخت ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۰

**سروبي کې په استشهادي برید کې ۲۲ تنه عسکر او پولیس مړه اوژوبل شول**

د پکتیکا ولایت د سروبي ولسوالۍ په مرکزي ودانۍ د ۱ تن استشهادي مجاهد( سراج سعد ) له لوري دسرف موټر په وسیله فدایي برید ترسره شو، په برید کې د ولسوالۍ ودانۍ ویجاړه شوه، ۱۲ تنه عسکر قتل او ۱۰ نور ژور ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۱

**ګومل کې ۱۱ تنه عسکر اوپولیس قتل، ۱۲ نور ژوبل دي**

د پکتیکا ولایت د ګومل ولسوالۍ په ودانۍ، دسپکو او درنو وسلو او په بندر په سیمه کې د مزدورو پولیسو په مرکز توغندویې برید ترسره شو، د معلوماتو په اساس په دواړو بریدونو کې ۱۱ تنه عسکر او پولیس ووژل شول او ۱۲ نور ژور ټپیان شول، په نښتو کې ۱ مجاهد د شهادت لوړ مقام ته ورسېد او ۵ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**جاني خېلو کې په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول**

د پکتیکاولایت د جاني خېلو ولسوالۍ اړوند د حسني او ژیړۍ سیمو کې د شریرو اربکیانو په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو په مهال دښمن ته تلفات واوښتل خو شمېره یې نه ده معلومه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**جاني خېلو کې ۱ اربکی ووژل شو، اووسله یې غنیمت شوه**

د پکتیکاولایت دجاني خېلو ولسوالۍ اړوند جلال زوکلي ته نژدې سیمه کې ۱ تن اربکي ووژل شو، کلاشنکوف او چانټه یې غنیمت شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**خیرکوټ کې د باکي خېلو ښاروال ووژل شو**

د پکتیکاولایت دخیر کوټ ولسوالۍ اړوند باکې خیل بازار ته څېرمه په ښاروال (جلال الدین) برید ترسره شو چې ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۷

**ګیان کې ۳ تنه عسکرقتل، ۵ تنه نورژوبل شول**

د پکتیکا ولایت د ګیان ولسوالۍ اړوند د ولي واسط په سیمه کې د مزدورو پولیسو په کاروان برید ترسره شو، د برید په لړ کې ۱ موټر ویجاړ، ۳ تنه مزدور عسکر قتل او ۵ نور ټپیان شول، مجاهدینو په جګړه کې ۱ میل کلاشنکوف، ۲ مخابرې او ۱ چانټه غنیمت کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**برمل کې د کاروان ۳ موټرتخریب، ۵ عسکرقتل، ۳ نورژوبل شول**

د پکتیکاولایت اړوند زاخېلو سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په کاروان برید ترسره شو، د برید په جریان کې د دښمن ۳ عرادې موټر تخریب، ۵ عسکر ووژل شول او ۳ نورژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۹

**وازه خوا کې موټرسایکل تخریب، ۲ پولیس ژوبل شول**

د پکتیکا ولایت د وازه خوا ولسوالۍ اړوند د مرجاني په سیمه کې د ګوډاګیو پولیسو په موټرسایکل چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټرسایکل تخریب او ۲ تنه پولیس ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**ظالم اربکی قومندان عبدل د پکتیکا مرکز ته نږدې ووژل شو**

د پکتیکاولایت د مرکز ښرني ته څېرمه سیمه کې د شریرو اربکیانو په ظالم قومندان ( عبدل ) برید ترسره شو، په برید کې قومندان ځای په ځای قتل شو او د خپلو شومو اوناروا کړنو په سزا ورسید. ۲۰۱۵/۱۱/۲۳

**سرحوزه کې موټر تخریب، ۳ تنه عسکرووژل شول**

د پکتیکا ولایت د سرحوزې ولسوالۍ اړوند دهني په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په کاروان چاودنه وشوه، د چاودنې په مهال ۱ عراده موټر تخریب او ۳ تنه مزدور عسکرووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۵

## ننګرهار

**غني خېلو کې شریرو اربکیانو ۱ تن بې ګناه ولسي کس ووژه**

د ننګرهار ولایت د غني خېلو ولسوالۍ اړوند د ګولاهي په سیمه کې د زیړګل په نوم یو کس نامعلومه وسلوالو تښتاوه، له پیښې لږ وروسته اربکي قومندان ( غالب ) ۲ تنه عام ولسي خلک (واحدالله او سرفراز) دزیړګل د تښتولو په تور بندیان کړل، کله چې په سیمه کې د تښتول شوي کس مړی په سیمه کې وموندل شو، قومندان غالب د ۱ تن بندي (واحدالله) پلار خیال الدین ونیواو دباسط پمپ ته څېرمه یې په شهادت ورساوه. ۲۰۱۵/۱۱/۴

**ننګرهار خوګیانوکې ۱۱ پولیس قتل، ۱۶ نورژوبل شول**

د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ اړوند د مملي قیوم خېلو په سیمه کې د ګوډاګي دښمن په ۲ امنیتي پوستو د سپکو او درنو وسلو بریدونه ترسره شول، د بریدونو په جریان کې دواړې پوستې ویجاړې، ۷ تنه پولیس قتل او ۱۱ نور ژور ټپیان شول، وروسته په کومکي عسکرو ۲ چاودنې هم وشوې چې له امله یې ۱ MB ټانک، ۱ رینجر تخریب شول ۴ پولیس مړه او ۵ نور سخت ژوبل شول، په نښته کې ۱ تن مجاهد هم شهید شو او ۳ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**بهسودوکې پوسته ویجاړه او دښمن ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د بهسودو ولسوالۍ اړوند د بهسودو پل په پوسته کې چاودنه وشوه، په چاودنه کې د پوستې مهمې برخې ویجاړې شوې او دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۳

**سرخرود کې ۳ اربکيان ووژل شول، ۳ نور ژوبل دي**

د ننګرهار ولايت د سرخرود ولسوالۍ اړوند د شمشپور، شمشپور خوړ، حاجي ظاهر کور او مارغونډۍ په سيمو کې په مزدوروعسکرو، پوليسو او اربکيانو بريدونه ترسره شول، په بريدونوکې ۳ تنه اربکيان ووژل شول او ۳ نور مرګوني ټپيان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**خيوه کې په پوسته دبريد له امله ۲ اربکيانو ته مرګ ژوبل واوښته**

د ننګرهار ولايت د خيوې ولسوالۍ اړوند دبوډيالي په سيمه کې د اربکيانو په پوسته د سپکو اودرنووسلو بريد ترسره شو، په بريد کې د پوستې ودانۍ زيانمنه او ۲ اربکيانو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**مهمند دره کې په پوسته د بريد له امله ۱ پوليس ووژل شو**

د ننګرهار ولايت د مهمند درې ولسوالۍ اړوند دګاړي په سيمه کې يو تن مزدورو پوليس په درازکوف وويشتل شو او ځاى په ځاى ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۴

**جلال اباد کې په هوايي ډګر توغندويي بريد ترسره شو**

د جلال اباد ښار ته نژدې په هوايي ډګر د اشغالګرو عسکرو په مرکز توغنديز بريد ترسره شو، په بريد کې ټاکل شوي هدفونه وويشتل شول او له امله يې دښمن ته زيان واوښت. ۲۰۱۵/۱۱/۱۵

**سرخرود کې نفوذي مجاهد ۳ اربکيان ووژل، ۲ نور يې ژوبل کړل**

د ننګرهار ولايت د سرخرود ولسوالۍ اړوند د شمشپور په سيمه کې ۱ تن نفوذي مجاهد (حيدر) په اربکيانو بريد وکړ، په بريد کې ۳ تنه اربکيان ووژل شول او ۲ نور يې مرګوني ژوبل شول او له ۱ ميل پيکا سره يوځاى ترمجاهدينو راورسېد. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

ننګرهار خوګيانوکې ۱ تن عسکر مجاهدينو ته تسليم شو

د ننګرهار ولايت د خوګيانو په ولسوالۍ کې ۱ تن عسکر (عجب خان) د حقانئقو په درک کولو د مزدوري اداري له ناولو ليکو نه رابيل اود اسلامي امارت مجاهدينو ته تسليم شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**ننګرهارکې مجاهدينو ۶ تنه اختطافګر ونيول**

د ننګرهار ولايت د خوګيانو ولسوالۍ اړوند د وزيرو له سيمي نه ۱ تن عام وګړی (رحيم شاه) چې د ۶ تنو سړي تښتونکو له لوري برمته شواو د وړې سار په سيمه کې ساتل کيده، د مجاهدينو د عملياتو په نتيجه کې له اختطافګرو نه وژغورل شو، په سړي تښتونکو کې محمدانعام، نوراغا، خواجه ګل، عزيزګل، وطن ګل او عاشور شامل دي. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**خوګيانوکې مشهوراربکی قوماندان ژوبل، ۱ تن ساتونکی يې ووژل شو**

د ننګرهار ولايت د خوګيانو ولسوالۍ اړوند احمدخېلو سيمه کې په شريرو اربکيانو بريد ترسره شو، په بريد کې د اربکيانو مشهور قوماندان (سرجنګي) مرګوني ټپي شو او ۱ تن ساتونکی يې ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۱۶

**سرخرود کې ۱ ټانک، ۱ رينجر تخريب، ۱۱ تنه عسکر قتل، ۱۳ نورژوبل شول**

د ننګرهار د سرخرود ولسوالۍ اړوند دککړک، عظيم اباد، سرخيلي، ګزک، کاکوخېلو، برکاکوخېلو او بالاباغ په کليو خارجي اشغالګرو او داخلي ګوډاګيانو وحشيانه چاپه ووهله، په جګړه کې د دښمن ۱ ټانک، ۱ رينجرويجاړ، ۱۱ تنه عسکرووژل شول، ۱۳ تنه نور مرګوني ټپيان شول او ددښمن عسکر له غوځي ماتي سره مخ شول، په نښتو کې ۳ تنه مجاهدين د شهادت لوړ مقام ته ورسيدل، ۲ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۷

**خوګيانوکې ۱ ټانګ ويجاړ، په کې سپرو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولايت د خوګيانوولسوالۍ اړوند د فتح اباد په سيمه کې له ګوډاګيو عسکرو او پوليسو سره سخته جګړه وشوه، د جګړې په ترځ کې ۱ ټانګ ويجاړ شو او په کې ناستو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته، په نښته کې ۱ تن مجاهد د شهادت لوړ مقام ته ورسيد. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**حصارک کې ۱ اربکی قتل، ۳ نور سخت ژوبل شول**

د ننګرهارولايت د حصارک ولسوالۍ اړوند د شفاخاني په پوسته بريد ترسره شوچې په مهال يې ۱ تن شرير اربکی ووژل شو، دغه راز د يادې ولسوالۍ اړوند د خنجر په سيمه کې هم د شريرو اربکيانو په پوسته بريد ترسره شوچې په مهال يې ۳ تنه اربکيان سخت ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱۸

**غني خېلو کې په مزدورو عسکرو بريد ترسره شو**

د ننګرهار ولايت د غني خېلو ولسوالۍ اړوند د تورخم جلال اباد لويه لار په مزدورو عسکرو بريدترسره شو، د بريد په جريان کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خوشمېره يې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۲۰

**جلال اباد کې د اشغالګرو عسکرو په مرکز توغنديز بريد ترسره شو**

د ننګرهار ولايت د جلال اباد ښار اړوندد اشغالګرو عسکرو په هوايي اډه توغنديز بريدترسره شوچې له امله يې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**ننګرهارغني خېلو کې په پوسته د بريد له امله ۲ تنه پوليس ژوبل شول**

د ننګرهار ولايت دغني خېلو ولسوالۍ اړوند د تورخم جلال اباد په لويه لار د ګوډاګيو عسکرو پوسته تربريد لاندي راغله چې په مهال يې ۲ تنه پوليس ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**غني خېلو کې په پليو پوليسو بريد ترسره شو**

د ننګرهار ولايت د غني خېلو ولسوالۍ اړوند د مارکو په سيمه کې د

ګوډاګي دښمن په پلیو پولیسو بریدوشو، په برید کې دښمن ته زیان واوښت خودقیق ارقام یې نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**خوګیاڼو کې ۱ تن ډاکټر د سړي تښتونکو له منګولو نه وژغورل شو**

د ننګرهارولایت دخوګیاڼوولسوالۍ په منګي سیمه کې مجاهدینوډاکټرشیراغا چې اختطافګرو دیادې ولسوالۍ له چمتلي سیمي نه تښتولی و، له سړي تښتونکو نه خلاص کړ او او۵ تنه اختطافګرې ونیول، په سړي تښتونکو کې محمدالله ،نور اغا، رحیم الله، محمد اوحاجي لعل ګل شامل دي. ۲۰۱۵/۱۱/۲۲

**غني خېلو کې اشغالګرو دشپې د چاپې په مهال ۴ ملکیان بندیان کړل**

د ننګرهار ولایت د غني خېلو ولسوالۍ اړوند دسیاچوب په سیمه کې خارجي اشغالګرو عسکرو د خلکو په کورونو چاپه ووهله، عسکرو د چاپې په مهال عام کلیوال ووهل او ۴ تنه یې بندیان کړل. ۲۰۱۵/۱۱/۲۴

**خوګیاڼو کې ۱ تن عسکر مجاهدینو ته تسلیم شو**

دننګرهار ولایت د خوګیاڼو په ولسوالۍ کې ۱ تن عسکر (سپین ګل) د حقائقو په درک کولو او د دعوت او ارشاد د مسئولینو په هلوځلو د دښمن له صفونو نه را جلا او له اسلامي امارت سره یوځای شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۵

**سرخرود کې رینجرویجاړ، ۵ تنه عسکرووژل شول**

د ننګرهارولایت د سرخرود ولسوالۍ اړوند د خیرباد سیمي په لویه لار په مزدورو عسکرو برید ترسره شو، د برید په جریان کې ۱ چاودنه په رینجر موټر وشوه چې له امله یې موټر ویجاړ شو، بله چاودنه په پلیو عسکرو وشوه چې ۴ تنه عسکریې ووژل، د برید په مهال ۱ عسکر د درازکوف په توسط ووژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۲۵

**بهسودوکې د تکتیکي برید له امله ۲ عسکرووژل شول**

د ننګرهار ولایت د بهسودو ولسوالۍ د بنګه په سیمه کې په مزدورو عسکرو تکتیکي بریدترسره شوچې په ترڅ کې ۲ تنه عسکر ځای په ځای ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲۷

**بټي کوټ کې ۴ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د ننګرهار ولایت د بټي کوټ ولسوالۍ اړوند د تورخم جلال په لویه لار د شینوارو کلا په سیمه کې له ګوډاګیوعسکرو، پولیسو او اربکیانوسره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ۴ تنو پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته، په نښته کې ۲ تنه مجاهدین د شهادت لوړمقام ته ورسیدل. ۲۰۱۵/۱۱/۲۹

**حصارک کې ۳ اربکیان ووژل شول، ۴ نور ژوبل دي**

د ننګرهارولایت د حصارک ولسوالۍ اړوند د چارچتوتو کلي ته څېرمه په شریرو اربکیانو برید وشو، په برید کې ۳ تنه شریر اربکیان ووژل شول، ۴ نور مرګوني ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۳۰

# کونړ

**دانګام کې ۵ عسکر قتل، ۷ نور ژوبل شول**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ اړوند دتنګي په سیمه کې د سرک په ۴ پوستو او کاروان سخت بریدونه ترسره شول، د بریدونو په جریان کې ۱ ټانګ، ۱ رینجر او ۲ عرادې اکمالاتي موټر ویجاړ شول، ۵ عسکر قتل او ۷ نور ژوبل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۱

**وټه پور کې ۴ عسکر له منځه لاړل، ۲ نور ژوبل شول**

د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ اړوند د ملکانه په سیمه کې د مزدرو عسکرو په رینجر چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۴ عسکر ووژل شول او ۲ نور مرګوني ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۲

**نرنګ کې په پوسته برید ترسره شو**

د کونړ ولایت د نرنګ ولسوالۍ اړوند د شنې غونډۍ په سیمه کې د مزدورو پولیسو په پوسته برید ترسره شو، په دې برید کې دښمن ته درون دزیان واوښت خو په اړه یې کره معلومات ندي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**سرکاڼو کې په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول**

د کونړ ولایت د سرکاڼو ولسوالۍ اړوند د شونه کلي ته څېرمه او په یاراني سیمو د مزدور دښمن په ۲ پوستوبریدونه ترسره شول چې په مهال دښمن ته تلفات واوښتل، همدا راز د یارخاني په سیمه کې هم د ګوډاګیو عسکرو په پوسته بریدوشوچې په مهال یې ۱ عسکر ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۳

**دانګام کې په پوسته برید ترسره شو**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ اړوند د امیر پاچا په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته داوښتو تلفاتو په اړه کره معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۳/۱۱/۲۰۱۵

**کونړ سرکاڼوکې پرپوستو د بریدونو له امله ۲ عسکر ژوبل شول**

د کونړ ولایت د سرکاڼو ولسوالۍ اړوند د غونډۍ سر او شونه کلي په پوستو بریدونه وشول چې په مهال یې ۲ تنه ګوډاګي عسکر ژوبل شول. د غه راز د یادې ولسوالۍ اړوند د نواپاس چیني پوستې ته څېرمه د مېوکنډو په سیمه کې په پلیوعسکرو بریدوشوچې په ترڅ کې یې عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**اسعد اباد ته نژدې په پوستو د برید له امله ۲ عسکرووژل شول**

د کونړ ولایت د مرکز اسعد اباد اړوند د کلاسر په سیمه کې د مزدورو عسکرو په ۳ دفاعي پوستو بریدونه ترسره شول چې په ترڅ کې یې د مزدور دښمن ۲ تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۵

**دانګام کې په پوسته برید ترسره شو**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ اړوند د امیر پاچا په پوسته د سپکو اود رنو وسلو برید ترسره شو، په برید کې د ښمن ته تلفات واوښتل خو په اړه یې کره معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**دانګام کې په بیس برید ترسره شو، ۱ عسکر ژوبل شو**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ اړوند مزدورو عسکرو په بیس د مجاهدینو لوري برید ترسره شو چې په جریان کې یې ۱ عسکر ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/٦

**سرکانو کې چاودنې د ۱ تن عسکر ژوند واخیست**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ اړوند د غونډ سر او شونه کلي په پوستو بریدونه ترسره شول. د بریدونو په جریان کې دښمن ته درانه تلفات واوښتل خو په اړه یې کره معلومات نه دي ترلاسه شوي. د غه راز په یاده ولسوالۍ کې د سرازغي پوستې ته څېرمه د مزدور دښمن په پلیو عسکرو د ماین چاودنې ۱ عسکر وواژه. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**دانګام کې په پوسته برید ترسره شو**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ اړوند د زمان په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته درانه تلفات واوښتل خو په اړه یې تردې مهاله کره معلومات نه دې ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**سرکانوکې د برید له امله ۲ عسکر وواژل شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ اړوند د نوآپاس په سیمه کې په پلیو عسکرو د دراز کوف برید ترسره شو چې له امله یې ۲ تنه ګوډاګي عسکر وواژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۷

**دانګام کې ۱ عسکر وواژل شو ۲ نور ټپیان شول**

د کونړ ولایت د دانګام ولسوالۍ اړوند د امیر پاچا پوستې ته څېرمه د ګوډاګي دښمن په پلیو عسکرو برید ترسره شو چې په مهال یې ۱ عسکر وواژل شو او ۲ تنه ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**کونړ مرکز کې په یوشمیر مهمو مرکزونو او پوستو بریدونه ترسره شول**

د کونړ ولایت په مرکز کې د ولایت په ودانۍ، امنیه قومندانۍ، د استخباراتو په ریاست او د شګي په سیمه کې د مزدور دښمن په ۲ پوستو او د ساګۍ په سیمه کې په ۳ پوستو بریدونه ترسره شول، په بریدونو کې دښمن ته تلفات واوښتل خو په اړه یې وروستي معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۲۰۱۵/۱۱/۸

**کونړ مرکز ته نژدې په پلیو عسکرو برید ترسره شو**

د کونړ ولایت مرکز اسعداباد ته څېرمه د نواباد په سیمه کې د مزدور دښمن په پلیو عسکرو برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو دقیق ارقام یې نه دي رارسیدلي. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**مروره کې ۷ تنه عسکر او اربکیان وواژل شول**

د کونړ ولایت د مروري ولسوالۍ اړوند د بکي په پوسته د سپکو او درنو وسلو بریدونه ترسره شول چې په ترڅ کې یې ۷ عسکر او اربکیان وواژل شول. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**سرکانوکې په پوستو او پلیو عسکرو بریدونه ترسره شول**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ اړوند د نوآپاس په سیمه کې په مزدورو عسکرو برید ترسره شو چې په مهال یې ۱ عسکر ژور ټپي شو. د غه راز په سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته او پلیو عسکرو هم بریدونه وشول چې په ترڅ کې یې دښمن ته تلفات واوښتل. په یوه بل خبر کې ویل شوي چې د منوکنډو په پوسته مجاهدینو برید وکړ چې له امله دښمن درانه زیانونه واوښتل. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**ناړي کې په پوسته د برید له امله ۳ عسکر وواژل شول ۱ بل ژوبل شو**

د کونړ ولایت د ناړي ولسوالۍ اړوند د پاټک په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۳ اجیر عسکر وواژل شول او ۱ بل ژوبل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**مانوګي کې په توغندویي برید کې ۱ عسکر وواژل شو**

د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ په ودانۍ توغندي وتوغول شول، په برید کې ۱ تن د مزدوري اردو عسکر چې شمس نومیده وواژل شو. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**وټه پور کې ۱ عسکر وواژل شو، ۲ نور ټپیان شول**

د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ اړوند پیروني په سیمه کې د مزدورو عسکرو په پوسته برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر وواژل شو او ۲ نور ټپیان شول. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**کونړ مرکز ته نژدې د دښمن په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول**

دکونړ ولایت د مرکز اسعد اباد اړوند سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په ۲ پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو په جریان کې د ښمن ته د اوښتو تلفاتو شمیر ه نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۵/۱۱/۹

**سرکانوکې د ګوډاګیو عسکرو په پوسته برید ترسره شو**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ اړوند د یارخانې په پوسته برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خو شمیر یې نه دی معلوم شوی. ۲۰۱۵/۱۱/۱۰

**سرکانوکې په شریرو اربکیانو برید ترسره شو**

د کونړ ولایت د سرکانو ولسوالۍ اړوند د ماشم اربکي پوستې ته څېرمه په پلیو اربکیانو برید وشو، په برید کې دښمن ته داوښتي زیان معلومات نشته. 10/11/2015

